

د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## یوولسم ټولګی

اسلامي ښوونه او روزنه - یوولسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ. ش



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د توري
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفين:** د تعليمي نصاب د اسلامي زده کړو برخې د درسي کتابونو مؤلفين

**اډيټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډيټ ديپارتمنت غړي

**ټولګی:** يوولسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف لوی رياست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړيکو او عامه پوهاوي رياست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښناليک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه يې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیځلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# د موضوعاتو فهرست



## د حدیثو برخه ۴۱



## د فقهې برخه ۸۰

# آسماني کتابونه

الله تعالی د خپلو بندګانو د لارښوونې لپاره وخت پر وخت کتابونه را لیږلي دي، تر څو دوی د هغو کتابونو له لارښوونو سره سم خپل ژوند عیار او د دنیا او آخرت نېکمرغي خپلې کړي.

## د کتاب تعریف

کتاب په لغت کې له کتابت څخه اخیستل شوی او لیکنې ته ویل کیږي او آسماني کتاب د الله تعالی د لارښوونو هغه کلام دی چې د خپلو رسولانو څخه یې یو رسول ته ورکوي چې خلکو ته یې ورسوي.

## د تعریف شرح

له کتاب څخه دلته د الله تعالی کلام مراد دی چې له نور او لارښوونو څخه برخمن دی، الله تعالی په هره زمانه کې د خپلو بندګانو د لارښوونې لپاره آسماني کتاب را نازل کړی چې هغوی دغه آسماني کتاب د خپل سپېڅلي قانون په توګه ومني او پیروي یې وکړي چې د دنیا په ستونزمنو او کړکېچنو لارو کې خپله لار ورکه نه کړي.

## د آسماني کتابونو د اثبات دلایل

په آسماني کتابونو باندې د ایمان د اثبات لپاره په قرآن کریم او د نبي کریمﷺ په مبارکو احادیثو کې ډېر زیات دلایل شته چې موږ یې دلته په لنډ ډول بیانوو:

### قرآن کریم

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمايي: ﴿قُولُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنْزِلَ إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَمَا أُوتِيَ مُوسَى وَعِيسَى وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِنْ رَبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾ [البقرة: ١٣٦] **ژباړه:** ووایئ چې! موږ ایمان راوړی دی په الله او پر هغه هدایت چې موږ ته راغلی دی او هغه چې ابراهیمعليه السلام، اسماعیلعليه السلام، اسحاقعليه السلام، یعقوبعليه السلام او د یعقوبعليه السلام ځوځات ته راغلی و او هغه چې موسیعليه السلام، عیسیعليه السلام او نورو ټولو پیغمبرانو ته د هغو د رب له لوري ورکړی شوی و، موږ د هغو په منځ کې هېڅ توپیر نه کوو، او موږ الله ته سر ټیټوونکي یو.

پدې مبارک آیت کې الله تعالی مؤمنان مامور کړي چې په قرآن کریم او په هغو کتابونو چې له قرآن کریم څخه مخکې نازل شوي ایمان راوړي.
الله تعالی په بل آیت کې فرمايي: ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ وَقَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ﴾ [البقرة: ۲۸۵]

ژباړه: پيغمبر پر هغه هدايت ايمان راوړی دی چې د هغه د رب له خوا پر هغه نازل شويدی او څوک چې د دې پيغمبر منونکي دي، هغوی هم دا هدايت د زړه په مينه منلی دی. دوی ټولو الله، د هغه پرښتې، د هغه کتابونه او د هغه پيغمبرانﷺ منلي دي او د هغو وينا دا ده چې: "موږ د الله په پيغمبرانو کې يو له بله توپير نه کوو، موږ حکم واورېده او اطاعت مو ومانه زموږ څښتنه! موږ ستا څخه د گناه د بښنې غوښتونکي يو او همدا ستا لوري ته زموږ درتگ دی.
الله تعالی پدې مبارک آيت کې د نبي کريمﷺ او مؤمنانو د ايمان صفت بيان کړی او هغه څه يې پکې څرگند کړي چې دوی په ايمان راوړلو پرې مامور شوي دي چې هغه ايمان په الله تعالی، ملايکو، کتابونو، رسولانو او نورو دی.
همدارنگه الله تعالی په يو بل مبارک آيت کې داسې فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي نَزَّلَ عَلَى رَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي أَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ وَمَنْ يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا﴾ [النساء: ۱۳۶] **ژباړه:** اې مؤمنانو! په الله، په رسول يې او په هغه کتاب ايمان راوړئ چې الله تعالی پر خپل رسول را نازل کړی او په هغه کتاب چې لومړی يې نازل کړی او څوک چې له الله او د هغه له ملايکو، کتابونو، رسولانو او وروستۍ ورځې څخه منکر شي، نو رښتيا چې هغه په بې لاريتوب کې ډېر لرې ولاړ.

**حديث شريف**

کله چې جبرائيلﷺ له نبي کريمﷺ څخه د ايمان په هکله پوښتنه وکړه، رسول اللهﷺ ورته وفرمايل: «أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ».[1]
**ژباړه:** ايمان دې ته ويل کيږي چې ته ايمان او يقين وکړې په الله تعالی او د هغه په

۱ - صحيح مسلم - (۱ / ۲۸)

ملایکو، کتابونو، رسولانو، د قیامت په ورځ او پدې ایمان او باور ولرې چې د خیر او شر ټولو اندازه د الله تعالی له لوري ده.

## په آسماني کتابونو د ایمان لرلو حکم

په ټولو آسماني کتابونو چې د الله تعالی له لوري را نازل شوي ایمان راوړل، یقین او باور کول پرې فرض دي.

## آسماني کتابونو ته د خلکو اړتیا

د بشر د تاریخ له پلټلو څخه ځرګندیږي چې انسان له یو لوري ځان غوښتنه لري، ځان خوښوي او د نورو آزادي او حقوق د برلاسي توب په وخت کې اکثراً په نظر کې نه نیسي.

**فعالیت:** له پخواني او معاصر تاریخ څخه د ظالمو چارواکو او زورورو خپلسرو قومونو د بشري ځان غوښتنې ځینې بېلګې د مثال په توګه په وار سره بیان کړئ.

او له بل پلوه د بشر پوهه نیمګړې ده، د کایناتو او د هغو د خالق په اړه له لارښوونې پرته حقیقت ته نه شي رسېدای او په همدې توګه د ټولنیزو اصولو او قوانینو په هکله یې علم نیمګړی دی، غوره او ګټورې لارې چارې په خپل سری سره نه شي پېژندلی، الله تعالی د انسان دې نیمګړتیا ته زمونږ پام را اړوي فرمایي: ﴿أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَنْ يُتْرَكَ سُدًى ۞ أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِنْ مَنِيٍّ يُمْنَى﴾ [القیامة: ۳٦، ۳۷] آیا انسان ګومان کوي چې خپل سری دې پرېښودل شي، آیا دی د منیو نطفه نه و چې په رحم کې غورځول کېده.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په وار سره د لاندې پوښتنو او ځوابونو په هکله خبرې اترې وکړي:

۱. هغه فیلسوفان چې په خپل عقل باندې په تکیه کولو یې د بشر د ژوند لپاره قوانین رامنځته کړي، آیا د ژوند د اصولو په هکله سره یوه خوله دي؟
۲. آیا بشر د دې وړتیا لري چې خپل سری پرېښودل شي؟
۳. د الله تعالی له لوري د شریعت رالیږلو ته څه اړتیا لیدل کیږي؟

نو بشر سخته اړتیا درلوده چې الله تعالی د دوی د لارښوونې او له هڅ پڅ کېدو څخه د ویستلو لپاره په بېلابېلو وختو کې پیغمبران را واستوي او د هغوی په لاس شریعتونه او کتابونه رانازل کړي.

الله تعالی فرمايي: ﴿رُسُلًا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا﴾ [نساء:۱۶۵]،

**ژباړه:** (الله تعالی) زېرى وركوونكي او وېروونكي پيغمبران راواستول چې له هغوی وروسته د خلكو لپاره په الله تعالی كوم حجت نه وي او الله تعالی غالب او د حكمت خاوند دی.

دا خبره ضروري ده بايد پرې پوه شو چې د ټولو آسماني كتابونو پيغام په قرآن كريم كې شتون لري او دغه كتاب د ټول بشريت د لارښوونې وروستنی كتاب دی. په دې سربېره د الله ﷻ په دې كتاب كې بركتونه دي، د هغه تلاوت ذكر دی او په دنيا كې د رحمتونو او په آخرت كې د ژغورنې سبب ګرځي.




۱. كتاب تعريف كړئ!
۲. په آسماني كتابونو باندې د ايمان د اثبات دلايل ووايئ!
۳. رسول الله ﷺ جبرائيل عليه السلام ته د ايمان په هكله څه وويل؟
٤. په آسماني كتابونو باندې د ايمان حكم بيان كړئ!
۵. آسماني كتابونو ته خلك څه اړتيا لري؟




زده كوونكي دې آسماني كتابونو ته د خلكو د اړتيا تر سرليك لاندې يوه مقاله وليكي چې له لسو كرښو څخه كمه نه وي.

# وحي

پدې لوست کې موږ په وحې باندې له ايمان راوړلو څخه بحث کوو.
وحې څه ته ويل کېږي؟ وحې د چا له خوا په چا باندې نازلېږي؟

## د وحې تعريف

وحې په لغت کې په ډېرو معناګانو سره استعمال شوې ده لکه: اشاره، پيغام، الهام، خفي کلام، امر او کتابت.[1] او د عقايدو د علم په اصطلاح کې د الله تعالی له لوري په پټه او خارق العاده طريقې سره د نبي خبرولو ته وحې ويل کېږي.[2]

## د تعريف شرح

وحې د الله تعالی له لوري له هغه چا سره چې د پيغمبرۍ لپاره يې غوره کړی وي په هر هغه څه چې اراده يې لري، په خفي او داسې طريقو سره خبرولو ته ويل کېږي چې د بندګانو په وس او توان پوره نه وي.

## د وحې د ثبوت دليل

نقلي دليل: حضرت محمدﷺ لومړنی پيغمبر نه و او نه لومړنی انسان و چې خلکو ته يې له وحې څخه خبرې کولې او دوی يې په آسماني خبرو باندې خبرول، بلکې له آدم عليه السلام څخه پيل تر حضرت محمدﷺ پورې ډېر پيغمبران تېر شوي چې خلک يې له وحې څخه خبرول. دوی له ځېلو ځانونو څخه خبرې نه جوړولې، بلکې د الله تعالی له لوري په رالېږلې وحې به يې دوی خبرول لکه څرنګه چې الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَوْحَيْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَعِيسَى وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا ۞ وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَاهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَى تَكْلِيمًا﴾ [النساء: ١٦٣، ١٦٤] **ژباړه:** اې محمدهﷺ موږ تا ته په هم هغه شان وحې لېږلې ده، لکه چې نوح عليه السلام او له هغه وروسته پيغمبرانو ته مو لېږلې وه. موږ ابراهيم عليه السلام، اسماعيل عليه السلام، اسحٰق عليه السلام، يعقوب عليه السلام او د يعقوب عليه السلام اولادې، عيسٰی عليه السلام، ايوب عليه السلام، يونس عليه السلام، هارون عليه السلام او سليمان عليه السلام ته وحې ولېږله او موږ داؤد عليه السلام ته زبور ورکړ او موږ پر هغو پيغمبرانو هم وحې نازله کړې چې د هغو يادونه مو

---

١ – لسان العرب، القاموس المحيط،، تفسير الرازي او تفسير البيضاوي.

٢ – مناهل العرفان – (١ / ٤٦)

له دي نه مخکې تا ته کړېده او پر هغو پیغمبرانو هم چې د هغو یادونه مو تاته نه ده کړې.
الله له موسی ﷺسره داسې خبرې کړې دي لکه څنګه چې خبرې کیږي.
په یو بل آیت کې الله تعالی د محمد ﷺ په هکله فرمايي: ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى۞ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى﴾ [النجم: ٣، ٤] **ژباړه:** هغه له خپل نفسي خواهش څخه نه غږېږي، دا خو یوه وحې ده چې پر هغه نازلیږي. همدارنګه الله تعالی په یو بل آیت کې فرمايي: ﴿أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَا إِلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ أَنْ أَنْذِرِ النَّاسَ وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِنْدَ رَبِّهِمْ قَالَ الْكَافِرُونَ إِنَّ هَذَا لَسَاحِرٌ مُبِينٌ﴾ [يونس: ٢] **ژباړه:** آیا د خلکو لپاره دا د حیرانتیا وړ خبره شوه چې موږ له همغو څخه یوه سړي ته وحې وکړه چې (په غفلت کې لوېدلي) خلک را ویښ کړه او څوک چې یې ومني هغو ته زېری ورکړه چې د دوی لپاره د هغو له رب سره ریښتونی عزت او سرلوړي ده؟ منکرانو وویل چې دا سړی ښکاره کوډګر دی؟.

## عقلي دلیل

وحې یو ریښتونی واقعیت دی، څوک چې د الله تعالی پر وجود او د هغه د قدرت په کمال ایمان لري د وحې له وجود څخه نه منکرېږي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د وحې د دلیلونو په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.

### پر وحې د ایمان حکم

په ټولو نازل شویو کتابونو او په ټولو وحیو باندې په اجمالي توګه ایمان او باور لرل فرض دي.

### د وحې ډولونه

الله تعالی خپلو پیغمبرانو ته په درې ډوله وحې کړې ده:

١. د الهام او خوب په توګه وحې.

أ. الهام: لکه څرنګه چې نبي کریمﷺ فرمايي: «إن روح القدس نفث في روعي أن نفسا لن تموت حتى تستكمل أجلها وتستوعب رزقها فأجملوا في الطلب ولا يحملن أحدكم استبطاء الرزق أن يطلبه بمعصية فإن الله لا ينال ما عنده إلا بطاعته»[1] **ژباړه:** یقیناً چې جبرائیلﷺ زما په زړه کې دا خبره الهام کړه چې هېڅ نفس تر هغه وخته نه مړ کېږي، تر څو خپله ټاکلې نېټه پوره کړي او خپل رزق پوره تمام کړي، نو رزق له روا لارو وغواړئ او د رزق ورو کېدل او کموالی دې په تاسو کې هېڅ یو دې ته اړ نکړي چې په ناروا

---

١ - حلية الأولياء - (١٠ / ٢٧)

لارو ېې ولټوي، ځکه هغه څه چې د الله تعالی پـه وړانـدې شـته هغـه د طاعـت څخـه پرته په نورو ناروا لارو نه شي تر لاسه کېدای.

ب. **په خوب کې ليدل:** لکه څرنګه چې الله تعالی ابـراهيمعليه السلام تـه پـه خـوب کـې وحـې وکړه چې خپل زوی اسماعيلعليه السلام ذبحه کړي او له همدې رښـتينو خوبونـو څخـه پـر حضرت محمدصلى الله عليه وسلم باندې وحې پيل شوې ده.

۲. **د پردې تر شا خبرې کول:** يعنې پدې صورت کې به د پيغمبر او الله تعالی تر منـځ واسـطه موجوده نه وه، بلکې پرته له واسطې به الله تعالی خپل پيغمبر تـه وحـې کـولې لکـه څرنګـه چې موسیعليه السلام د الله تعالی خبرې پرته له واسطې څخه اورېدلې دي.

۳. **د ملايکې په واسطه:** يا به الله تعالی خپل پيغمبر ته ملايکـه لېږلـه، نـو دې ملائکـې بـه هغه وحې پيغمبر ته رسوله چې دا د جبرائيلعليه السلام دنده وه.[1]

د وحې پورتنې درې ډولونه الله تعالی پدې مبارک آيت کې داسې بيانوي: ﴿وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِيَ بِإِذْنِهِ مَا يَشَاءُ إِنَّهُ عَلِيٌّ حَكِيمٌ﴾ [الشورى: ٥١] **ژباړه:** هېڅ بشر دا مقام نه لري چې الله له هغه سره مخامخ خبرې وکـړي يـا خو د هغه خبرې په وحې (اشاره) سره وي يـا د پـردې تـر شـا، يـا کـوم پيغـام راوړنکـې (پرښته) لېږي او پرښته د الله په حکم سره هر څه چې هغه غواړي وحې کوي، هغه لوړ او د حکمت خاوند دی.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د وحې د ډولونو په اړه يو له بل سره خبرې وکړي.




۱. وحې لغتاً او اصطلاحاً تعريف کړئ.
۲. د وحې د شتون دليلونه بيان کړئ.
۳. په وحې باندې د ايمان حکم څه دی؟
٤. د وحې ډولونه بيان کړئ.
٥. هغه مبارک آيت ذکر کړئ چې الله تعالی د وحې ډولونه په کې ذکر کړي دي.

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د وحې په اړه په خپلو کتابچو کې يوه مقاله وليکي چې لـه لـسو کرښـو کمه نه وي.

---

١ - تفسير الرازي، ج: ٢٧، ص: ١٨٦.

دريم لوست

# پر انبياوو او رسولانو ايمان

١. نبي او رسول چا ته ويل کېږي؟
٢. آيا نبوت او پيغمبري په کار او زيار سره ترلاسه کېداى شي؟

## ١- د نبي او رسول تعريف

أ. نبي: چې د الله تعالى له لوري وحې ورته راغلې وي.
ب. رسول: هغه چا ته ويل کېږي چې الله تعالى خپلو بندګانو ته د خپلو احکامو د رسولو لپاره له نوي شريعت سره استولى وي.

## ٢. د نبي او رسول تر منځ توپير

رسول هغه چا ته ويل کېږي چې الله تعالى خپلو بندګانو ته له نوي شريعت سره را استولى وي چې هغه خلکو ته ورسوي او نبي هغه دى چې الله تعالى د خپلو بندګانو د لارښوونې لپاره رالېږلى وي، برابره خبره ده که د پخوانيو انبياوو شريعت خلکو ته رسوي، نوى شريعت ورسره نه وي او يا هم نوى شريعت ورکړل شوى وي، نو هر رسول ته نبي ويل کېږي، خو هر نبي ته رسول نه ويل کېږي.

## ٣. د انبياوو شمېر

په قرآن کريم کې د پنځه ويشتو انبياوو يادونه راغلې، اتلس تنه يې د الله تعالى په دې قول کې ذکر شوي: ﴿وَتِلْكَ حُجَّتُنَا آتَيْنَاهَا إِبْرَاهِيمَ عَلَى قَوْمِهِ نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَنْ نَشَاءُ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ۞ وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ كُلًّا هَدَيْنَا وَنُوحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ وَمُوسَى وَهَارُونَ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۞ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَى وَعِيسَى وَإِلْيَاسَ كُلٌّ مِنَ الصَّالِحِينَ ۞ وَإِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعَالَمِينَ﴾ (الأنعام: ٨٣ - ٨٦)

**ژباړه:** او دا زمونږ دليل دى چې ابراهيم ته مو د قوم په مقابل کې ورکړى و، چا ته چې مو خوښه شي درجې يې لوړوو، بې شکه ستا څښتن ډېر د حکمت او علم خاوند دى او ده ته مو اسحاق او يعقوب وربښلي وو، ټولو ته مو لاره ښودلې وه او نوح ته مو پخوا لاره ښودلې وه او د ده له اولادې څخه داوود، سليمان، ايوب، يوسف، موسى او هارون

عليهم السلامو او مونږ نېک عمله خلکو ته همداسې غوره بدل ورکوو او زکریا، یحیی، عیسی او الیاس عليهم السلام ټول له صالحانو څخه وو او اسماعیل، الیسع، یونس، لوط او نور ټول مو په نورو خلکو غوره ګرځولي وو.

او اوه تنه يې په نورو ځایونو کې ذکر شوي چې هغوی عبارت دي له: **آدَم**،**إِدْرِيس**، **هُود**، **صَالِح**، **شُعَيْب**، **ذُو الْكِفْل** او **مُحَمَّدٌ خَاتَمُ النَّبِيِّين (عَلَيْهِمْ جَمِيعًا صَلَوَاتُ اللَّهِ وَسَلاَمُهُ)**.

په قرآن کې راغلي چې نور پیغمبران هم شته، الله تعالی فرمایي: **﴿وَرُسُلاً قَدْ قَصَصْنَاهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْل وَرُسُلاً لَمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ﴾** [النساء: ۱۶۴]

او په حدیثونو کې د انبیاوو شمېر یو لک او څلورویشت زره او د رسولانو شمېر درې سوه او دیارلس ته ښودل شوی، خو علماء وايي چې په دې حدیثونو کې ضعف دی[1] نو د مجموعي تعداد په هکله يې توقف غوره دی.

## ٤. په رسولانو باندې د ایمان د اثبات دلیل

الله تعالی په خپل کتاب قرآن کریم کې فرمایي: **﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ وَقَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ﴾** [البقره: ۱۸۵] ژباړه: پیغمبر پر هغه هدایت ایمان راوړیدی، چې د هغه د رب له خوا پر هغه نازل شویدي او څوک چې د دې پیغمبر منونکي دي، هغوی هم دا هدایت د زړه په مینه منلی دی. دوی ټولو الله، د هغه پرښتې، د هغه کتابونه او د هغه پیغمبران عليهم السلام منلي دي او د هغو وینا دا ده چې: «موږ د الله په پیغمبرانو کې یو له بله توپیر نه کوو، موږ حکم واورېده او اطاعت مو ومانه زموږ څښتنه! موږ ستا څخه د ګناه د ښښنې غوښتونکي یو او همدا ستا لوري ته زموږ درتګ دی.»

**فعالیت:** زده کوونکي دې په خپلو منځونو کې د نبي او رسول تر منځ پر توپیر خبرې وکړي.

## ٥. په انبیاوو او رسولانو باندې د ایمان حکم

په ټولو انبیاوو او رسولانو علیهم السلام باندې ایمان لرل فرض او د اسلامي عقیدې له ارکانو څخه شمېرل کیږي، نو له یوه نبي او رسول څخه انکار د ټولو انبیاوو او رسولانو

---

١. د ابن کثیر تفسیر د دې آیت لاندې (وَرُسُلاً لَمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ).

څخه انکار بلل کيږي، له همدې امله مسلمان د ټل لپاره لـه خپلې عقيـدې سره سم دا ګواهي ورکوي چې د هېڅ نبي تر منځ په ايمان کې توپير نه کـوي، پـه ټولـو رسـولانو او نبيانو باندې پرته له کوم توپيره يو ډول ايمان لري، ځکه دوی ټول د الله تعالی له لوري را استول شوي دي.

### ۶. نبوت الهي ورکړه ده

نبوت يوه الهي ورکړه ده. هر هغه چا ته چې الله تعالی وغواړي نبوت او رسالت ورکـوي، په ذوق، کوښښ او خپله خوښه هېڅـا تـه نـه ورکـول کېـږي، يعنـې دا چـې پـه عبـادت، رياضت او زيار نه تر لاسه کېږي، الله تعالی د انبياوو ستاينه او توصيف په قرآن کريم کې داسې کړی دی: ﴿وَإِنَّهُمْ عِندَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ﴾ [ص: ۴۷]

**ژباړه:** په يقيني توګه زموږ په نزد هغوی په غوره شويو نېکو کسانو کې شمار دي له دې. آيت څخه دا څرګنده شوه چې انبياء د الله جل جلاله د لوري غوره شوي کسان دي.

**فعاليت:** زده کوونکي دې پر انبياوو او رسولانو باندې د ايمان د حکم په اړه يو له بـل سـره خبرې وکړي.

### ۷. په نبيانو او رسولانو باندې د ايمان تفصيل

په انبياوو او رسولانو باندې ايمان درلودل د قرآن او سنتو په رڼا کې تفصيل لـري چـې پـه لانـدې کرښو کې ورته اشاره کوو:

۱. پر هغو انبياوو او رسولانو باندې ايمان لرل چې الله تعالی په قرآن کريم کې ذکـر کـړي دي او ټول شمېر يې پنځه ويشت تنه دي، همدارنګه پدې باندې هم ايمـان لـرل چـې الله تعالی له دې ذکر شويو پيغمبرانو څخه پرته نور پيغمران هم را استولي دي.

۲. پدې ټينګ باور او ايمان لرل چې د ټولو انبياوو د بلنې محور د الله تعـالی د يـووالي منـل او د هغه عبادت و.

۳. پرته له توپيره په ټولو انبياوو باندې ايمان لرل، د دوی د نبوت او رسالت تـصديق کـول، سره له دې پدې باور لرل چې ځينې يې له ځينو نورو څخـه غـوره او محمـد ﷺ تـر ټولـو پيغمبرانو غوره دی.

٤. پـدې بانـدې ايمـان او بـاور لـرل چـې دوی ټـول انـسانان دي او د الوهيـت هـېڅ ډول خصوصيات نه لري.

٥. پدې باندې ايمان لرل چې انبياء او رسولان له ټولو خلکو څخه د علم، عمل او اخلاقو له پلوه کامل دي، دوی خپل امانت پوره کړی او رسالت يې په پـوره امانـت داری سـر تـه رسولی دی.

٦. پدې باندې ايمان لرل چې الله تعـالی د خپلـو انبيـاوو د تـصديق لپـاره دوی تـه معجـزې ورکړې دي.

٧. پدې باندې ايمان لرل چې د نبوت لړۍ په محمدﷺ پـای تـه رسـېدلې او محمـدﷺ ټولـو خلکو ته استول شوی دی او د ده له رحلت څخه وروسته بل نبي يا رسـول د قيامـت تـر ورځې پورې نه راځي او د وحې لړۍ پای ته رسېدلې ده.

**فعاليت:** په قرآن کريم کې د څو پيغمبرانو نومونه ذکر شوي دي؟

## ٨ په انبياوو او رسولانو باندې د ايمان معنا

الله تعالی په خپل کتاب قرآن کريم کې فرمـايلي دي: ﴿قُولُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنْزِلَ إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَمَا أُوتِيَ مُوسَى وَعِيسَى وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِنْ رَبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾ [البقرة: ١٣٦] ژباړه: ووايئ چې! مونږ ايمان راوړيدی په الله او پر هغه هدايت چې مونږ ته راغلی دی او هغه چې ابراهيمعليه السلام، اسماعيلعليه السلام، اسحاقعليه السلام، يعقوب او د يعقوبعليه السلام ځوځات ته راغلی و او هغه چې موسیٰ عليه السلام، عيسیعليه السلام او نـورو ټولو پيغمبرانو ته د هغو د رب له لوري ورکړی شوی و، مـونږ د هغـو پـه مـنځ کـې هـېڅ توپير نه کوو، او مونږ الله ته سر ټيټوونکي يو.

په انبياوو او رسولانو باندې ايمان او ټينګ باور لرل دې ته وايـي چـې الله تعـالی خپلـو ځينـو بنده ګانو ته وحې کوي، تر څو خلکو ته د الله تعالی د نعمتونـو زېـری ورکـړي او د هغـه لـه عذاب څخه يې ووېروي، خو دا هر څه يوې موخې ته د رسېدو لپاره تر سره کوي چې هغه د الله تعالی عبادت، د دين اقامت او الله تعالی په ربوبيت، الوهيت، نومونـو او صـفاتو کـې يـو ګڼل دي.




لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

۱. نبي او رسول تعريف کړئ.
۲. نبي او رسول څه توپير لري.؟ په لنډو ټکو کې يې بيان کړئ.
۳. آيا نبوت په زيار او عبادت سره تر لاسه کيږي؟
٤. په انبياوو او رسولانو باندې د ايمان د وجوب دلايل ذکر کړئ.
٥. په قرآن کريم کې د څو پيغمبرانو نومونه راغلي دي؟ کوم چې درته ياد دي ويې ليکئ.
٦. په انبياوو او رسولانو باندې ايمان څه حکم لري؟



### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نبي او رسول په اړه په خپلو کتابچو کې يوه مقاله وليکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

# د انبیاوو او رسولانو علیهم السلام صفتونه

الله تعالی پیغمبران د ښو، غوره او نېکو صفتونو خاوندان گرځولي دي، تر څو په ښه توگه خلك سمې او نېکې لارې ته دعوت کړي. همدارنگه الله تعالی دوی له ټولو هغو خویونو او کړنو څخه چې د نبوت له منصب سره مناسب نه دي، پاك او سپېڅلي کړي دي.

## د انبیاوو صفتونه

د انبیاوو علیهم السلام ځینې صفتونه په قرآن کریم کې ذکر شوي دي چې په لاندې ډول بیانیږي:

### ۱. عصمت

د عصمت تعریف: عصمت په لغت کې حفظ او ساتلو ته وایي او د عقایدو د علم په اصطلاح کې عصمت (پاکوالي) د الله تعالی هغه لطف دی چې پیغمبرﷺ د نېکو کارونو کولو ته هڅوي او د بدو کارونو له کولو څخه یې ساتي، له انسان څخه اختیار نه ساقطوي، تر څو د ازمایښت او امتحان حقیقت باقي وي.[۱]

## د تعریف شرح

الله تعالی خپل ټول انبیاء په خپل فضل او کرم سره له نبوت څخه مخکې او وروسته له ټولو گناهونو څخه پاك ساتلي دي، داسې ځواك یې ورکړی دی چې د نېکو کارونو کولو ته یې هڅوي او د ناوړه کارونو له کولو څخه یې منع کوي، خو له دوی څخه اختیار نه ساقطوي.

## له گناهونو څخه د انبیاوو علیهم السلام عصمت

د ښه وضاحت لپاره د انبیاوو عصمت په لاندې ډول شرح کوو:

أ. کبائر گناهونه: کبیره گناه هغې گناه ته ویل کیږي چې یا په دنیا کې حد ورته ټاکل شوی وي او یا د جهنم په اور باندې وعده ورکړل شوې وي او یا لعنت او یا غضب ورباندې ویل شوی وي.

ب. صغائر گناهونه: صغیره گناه هغې گناه ته ویل کیږي چې په دنیا کې حد ونه لري او په آخرت کې ورته عذاب نه وي ټاکل شوی.

---

۱ - المسامرة. ص: ۲۲۹.

## لومړی: له لویو ګناهونو څخه د انبیاوو علیهم السلام عصمت (پاکي)

ټول انبیاء کرام له بعثت څخه مخکې او وروسته له ټولو لویو ګناهونو لکه: کفر، دروغ ویل او داسې نورو څخه پاک او سپېڅلي دي، له دوی څخه قصداً او یا سهواً هېڅ وخت لویه ګناه نه پېښیږي، بلکې له دې ټولو ګناهونو څخه معصوم دي.

## د دې عصمت دلایل

څرنګه چې د انبیاوو له ټولو ستره او مهمه دنده خلکو ته د الله ﷻ پیغام رسول دي، نو قرآن کریم په څرګندو ټکو کې په دې هکله د هغوی په صدق ګواهي ورکړې، الله تعالی فرمایلي دي: ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى ۞ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى﴾ [النجم:۳، ٤] ژباړه: هغه له خپل نفسي خواهش څخه نه غږیږي، دا خو یوه وحې ده چې پر هغه نازلیږي.

همدارنګه نبي کریم ﷺ په خپل یوه مبارک حدیث شریف کې فرمایي: عن أبي هريرة ﷺ قال: قالوا: يا رسول الله إِنَّك تُدَاعِبُنا. قال: (إِنِّي لا أَقُولُ إِلا حَقّاً) (۱)

**ژباړه:** له حضرت ابو هریره رضي الله تعالی عنه څخه روایت دی چې اصحابو کرامو وویل: اې د الله تعالی رسوله! ته له موږ سره ټوکې کوې. رسول الله ﷺ وفرمایل: زه له حق څخه پرته بل څه نه وایم.

همدارنګه د دوی په هکله الله تعالی فرمایي: ﴿وَاجْتَبَيْنَاهُمْ وَهَدَيْنَاهُمْ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ﴾ (الانعام: ۸۷) **ژباړه:** او دوی مو خوښ کړي او نېغه لاره مو ورته ښودلې ده.

## دویم: له صغائرو (کوچنیو) ګناهونو څخه د انبیاوو علیهم السلام عصمت

د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد پیغمبران علیهم الصلاة والسلام لکه څرنګه چې له لویو ګناهونو څخه پاک او معصوم دي همدارنګه له صغائرو (کوچنیو) ګناهونو څخه هم پاک او معصوم دي.

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایي: ﴿وَإِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ﴾ [ص: ٤٧].

ژباړه: په یقیني توګه زموږ په نزد هغوی په غوره شویو نېکو کسانو کې شمار دي.

۲. **بشریت:** انبیاء او رسولان ټول بشر دي، خوراک، څښاک کوي، ویده کیږي، ناروغه کیږي، وږي کیږي، تږي کیږي، نکاح کوي په غیبو باندې نه پوهیږي او د داسې نورو ټولو بشري صفتونو خاوندان دي، تر څو له خلکو سره صله رحمي وکړي، د

---

۱ - سنن الترمذي - (٤ / ۳٥۷)

دوی له احساس څخه خبر وي او د مستقیمې لارې په ښودلو کې الله تعالی په دوی باندې قوي حجت قائم کړی، الله تعالی په دې اړه فرمایلي دي: ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾ [التوبة: ١٢٨]. ژباړه: وګورئ تاسې ته یو پیغمبر راغلی دی چې په خپله له همدا تاسې څخه دی، په زیان کې ستاسې لوېدل پر هغه ګران تمامیږي، هغه ستاسې د رغېدنې حرصناک دی. د مؤمنانو لپاره هغه خواخوږی او زړه سواندی دی.

٣. **تبلیغ:** خلکو ته د هغو احکامو رسول چې په رسولو یې مامور شوی وي تبلیغ بلل کېږي، تر څو هغوی ته د دنیا او آخرت د نېکمرغیو لارښوونه وکړي چې دا کار ټولو پیغمبرانو تر سره کړی او هېڅ شی یې نه دی ورڅخه پټ کړی، الله تعالی پدې اړه فرمایلي دي: ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ﴾ [المائدة: ٦٧] ژباړه: اې پیغمبره! څه چې ستا د رب له لوري پر تا نازل کړی شویدي هغه خلکو ته ورسوه. که داسې دې ونه کړل، نو د هغه د پیغمبرۍ حق دې ادا نه کړ.

٤. **زیرکتیا:** هر نبي د زیرکتیا او لوړ فهم څخه برخمن وي، الله تعالی پدې اړه فرمايي: ﴿فَفَهَّمْنَاهَا سُلَيْمَانَ وَكُلًّا آتَيْنَا حُكْمًا وَعِلْمًا وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُودَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ وَكُنَّا فَاعِلِينَ﴾ [الأنبياء: ٧٩] ژباړه: نو په هغه وخت کې موږ د فیصلې صحیح صورت سلیمان ته وښوده پداسې حال کې چې موږ حکم او علم دواړو ته ورکړی و، له داؤد سره موږ غرونه او الوتونکي ایل کړي وو چې پاکي یې بیانوله، د دغه کار کوونکي همدا موږ وو.

٥. **نارینتوب:** ټول علماء پدې اتفاق دي چې الله تعالی ټول انبیاء نارینه رالیږلي دي هېڅ ښځې ته د نبوت منصب نه دی ورکړای شوی، آن تر دې چې ځینو علماوو په دې خبره اجماع هم نقل کړې ده، ځکه الله تعالی فرمایلي دي: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي إِلَيْهِمْ﴾ [یوسف: ١٠٩] ژباړه: اې محمده(ﷺ) له تا نه مخکې چې موږ کوم پیغمبران لیږلي وو هغوی هم ټول سړي وو، همغو لوري ته موږ وحي لیږو. په پورتني آیت کې د رجل لفظ ذکر شوی دی او په عربي ژبه کې«رجل» نارینه ته ویل کیږي.

٦. **له عیبونو څخه پاکوالی:** پیغمبران علیهم السلام له لاندې عیبونو څخه پاک او سپېڅلي دي:

أ.  هر پيغمبر د بعثت په وخت کې د خپلې زمانې له ټولو خلکو څخه د خلقت له مخې غوره وي.

ب. هر نبي له داسې عيبونو څخه چې طبيعت ورڅخه کرکه او نفرت کوي، پاك او سپېڅلی دی، لکه: پيس، جذام او داسې نور.

ج.  نبي د داسې کسب خاوند نه وي چې عرف يې بد وګڼي، لکه: ښکر لګول او داسې نور.

د.  نبي د زړه له سختوالي څخه پاك وي، ځکه که چېرې نبي بې رحمه او د سخت زړه خاوند وي. نو بيا خلك ورڅخه نفرت کوي، الله تعالی پدې اړه داسې فرمايلي دي: ﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ﴾ [آل عمران: ۱۵۹] ژباړه: اې پيغمبره (ﷺ) دا د الله لوی رحمت دی چې ته د دې خلکو لپاره ډېر نرم خويه جوړ شوی يې، که داسې نه وای او ته تونډ خويه او سخت زړی وای، نو دا ټول به ستا له شاوخوا نه خواره شوي وو.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د انبياوو عليهم السلام د صفتونو په اړه يو له بل سره خبرې وکړي.




۱.  عصمت تعريف کړئ.
۲.  د انبياوو د عصمت دلايل بيان کړئ.
۳.  د بشريت د صفت دلايل ووايئ.
٤.  د تبليغ د صفت دلايل ووايئ.
٥.  د زيرکتيا د صفت دلايل ووايئ.
٦.  د نارينتوب د صفت دلايل بيان کړئ.
۷.  له کومو عيبونو څخه د انبياوو پاکوالی لازمي دی؟



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د انبياوو د صفتونو په اړه يوه مقاله وليکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

پنځم لوست

# اولو العزمه پیغمبران

ټول پیغمبران د الله تعالی په وړاندې معزز او د عزت خاوندان دي، ټول پیغمبران د ډېر زيات عزم، صبر اوحوصلې خاوندان وو، خو ځيني پيغمبران الله تعالی په عزم سره ستايلي دي دا په دې دلالت کوي چې دوی د نورو انبياوو عليهم السلام په پرتله د ډېر قوي عزم او د الله تعالی په وړاندې د ډېر لوړ مقام او لوړې درجې خاوندان دي.

## د عزم تعريف

عزم صبر، ثبات او د يو کار د کولو لپاره قوي هوډ ته ويل کيږي.

## ولې ځينو پيغمبرانو ته اولو العزم ويل کيږي؟

ځينو پيغمبرانو ته ځکه اولو العزم ويل کيږي چې دوی د دعوت او رسالت په کار کې له صبر، ډېر زغم او حوصلې څخه کار اخيستی دی، نو الله تعالی په اولوالعزم صفت سره ستايلي دي او فرمايي: ﴿فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ أُولُو الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ﴾ [الاحقاف، ۳۵] **ژباړه:** نو صبر کوه لکه چې همتناکو رسولانو صبر کولو.

## د اولو العزمه پيغمبرانو شمېر

د اولو العزمه پيغمبرانو د شمېر په اړه له علماوو څخه ډېر قولونه نقل شوي دي، خو د جمهورو علماوو په نزد اولو العزم پيغمبران پنځه کسان دي، حضرت نوح عليه السلام، حضرت ابراهيم عليه السلام، حضرت موسی عليه السلام، حضرت عيسی عليه السلام او حضرت محمد ﷺ.

چې الله تعالی پدې قول کې راټول کړي دي: ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِيثَاقًا غَلِيظًا﴾ [الأحزاب: ۷] ژباړه: او هغه مهال چې موږ له (ټولو) انبياوو او (خصوصاً) له تا، نوح، ابراهيم، موسی او د مريمې زوی عيسی نه ژمنه واخيسته او ښه پخه ژمنه مو ترې واخيسته او همدارنګه الله تعالی په دې مبارک آيت کې هم ذکر کړي دي: ﴿شَرَعَ لَكُمْ مِنَ الدِّينِ مَا وَصَّى بِهِ نُوحًا وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ﴾ [الشورى: ۱۳] ژباړه: تاسو ته يې هماغه دين ټاکلی (بيان کړی) چې په هغه سره يې نوح ته سپارښتنه کړې وه او هغه چې تا ته مو وحې کړې او په هغه سره موږ ابراهيم،

موسى او عيسى ته سپارښتنه کړې وه چې (همدغه) دين تر سره کړئ او اختلاف مه پکې اچوئ. مشرکانو باندې هغه خبره ډېره درنه ده چې ته يې وربلې.

### د اولوالعزمه پيغمبرانو نومونه

١. حضرت نوح عليه السلام
٢. حضرت ابراهيم عليه السلام
٣. حضرت موسى عليه السلام
٤. حضرت عيسى عليه السلام
٥. حضرت محمد صلى الله عليه وسلم

**فعاليت:** زده کوونکي دې د اولوالعزمه پيغمبرانو د شمېر په اړه په خپلو کې سره خبرې اترې وکړي.

### د اولو العزمه پيغمبرانو فضيلت

دغه اولو العزمه پيغمبران له نورو ټولو پيغمبرانو څخه د زيات فضيلت خاوندان دي او په دوى کې د ډېر زيات فضيلت خاوند حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دى.

له ابي هريره رضي الله تعالى عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:«خِيَارُ وُلْدِ آدَمَ نُوحٌ وَإِبْرَاهِيمُ وَعِيسَى وَمُوسَى وَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ اَجْمَعِيْن»، **ژباړه:** د آدم عليه السلام د اولادې تر ټولو غوره حضرت نوح عليه السلام، حضرت ابراهيم عليه السلام، حضرت عيسى عليه السلام، حضرت موسى عليه السلام او حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دي.

همدارنګه امام بخاري له ابي هريره رضي الله تعالى عنه څخه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: «أَنَا سَيِّدُ وُلْدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَوَّلُ مَنْ يَنْشَقُّ عَنْهُ الْقَبْرُ وَأَوَّلُ شَافِعٍ وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ».[1]

**ژباړه:** زه د قيامت په ورځ د آدم عليه السلام د اولادې سيد او مشر يم، لومړى به له ما څخه قبر شق او څېرې کيږي، زه لومړى شفاعت کوونکى يم او لومړى به زما شفاعت قبليږي.

---

١ - أصول الإيمان في ضوء الكتاب والسنة - (١ / ٢٢١)

**فعالیت:** زده کوونکي دې د اولو العزمه پیغمبرانو نور فضیلتونه هم بیان کړي.




۱. آسماني کتابونه څو او په چا نازل شوي دي؟

۲. عزم تعریف کړئ.

۳. اولو العزمه پیغمبرانو ته ولې اولو العزمه ویل کیږي؟

٤. اولو العزمه پیغمبران څو دي؟

۵. د اولو العزمه پیغمبرانو د فضیلت په اړه یو حدیث شریف ووایئ.

# معجزه او سحر

## ۱. معجزه

### د معجزې تعریف

معجزه په لغت کې له عجز څخه اخیستل شوې چې بېوسې کوونکي او عاجز کوونکي ته وېل کیږي او په اصطلاح کې د هغه ننګوونکي، خارق العادة کار او وینا څخه عبارت ده چې الله تعالی یې د نبوت او رسالت د دعوا لرونکو د رېښتینولۍ په قصد له دوی څخه صادروي چې نور انسانان ورڅخه عاجز وي.

### د معجزې تعریف شرحه

معجزه داسې کار او وینا ته ویل کېږي چې د نبوت او رسالت له دعوا لرونکو څخه صادریږي چې لاندې شرطونه لري:

۱. معجزه به ننګوونکې وي، که چېرې ننګونه ونه لري معجزه نه بلل کیږي.
۲. د رسالت او یا نبوت د دعوا د رېښتینولۍ په خاطر یې ښکاره کوي که څوک خارق العادة کار تر سره کوي مګر د نبوت یا رسالت دعوا ونه لري معجزه نه بلل کیږي.
۳. خارق العاده کار به له دعوا سره برابر وي.
٤. مقابل لوری به د دغه خارق العاده کار له سر ته رسولو څخه عاجز وي. که چېرې مقابل لوری هم د داسې خارق العاده کار په تر سره کولو قادر وي، معجزه نه بلل کیږي.

### د معجزې ډولونه

د انبیاوو او رسولانو علیهم السلام معجزې په دوه ډوله دي:

۱. محسوسې معجزې.
۲. غیر محسوسې معجزې.

لومړی محسوسې معجزې: له هغو معجزو څخه عبارت دي چې انسانان یې په پنځه ګونو حواسو درک کوي، لکه د صالح عليه السلام په دعاء سره له غره څخه د بلاربې اوښې را ایستل، د عیسی عليه السلام په دعاء سره د مور زادي ړوند او د برص (برګي) ناروغ روغېدل، د موسی عليه السلام امسا په مار باندې بدلېدل، او د نیل بحر دوه ځایه کېدل، د پیغمبر ﷺ اسراء او

معراج، د سپوږمۍ دوه ټوټې کېدل، د پيغمبرﷺ له مبارکو ګوتو څخه د اوبو بهېدل او داسې نور.

**دويم** غير محسوسې معجزې: دا هغه معجزې دي چې د عقل په وسيله درک کېږي، لکه د راتلونکو غائبو پېښو او حوادثو په اړه معلومات ورکول او پر محمدﷺ نازل شوی کتاب (قرآن کريم) چې د محمدﷺ تر ټولوستره معجزه ده.

## د معجزې حکم

د پيغمبرانو عليهم السلام پر معجزاتو ايمان درلودل فرض دي، ځکه چې د هر پيغمبر معجزه په حقيقت کې د الله تعالی وحې ده چې د پيغمبر ريښتينولي ثابتوي لکه څرنګه چې پر پيغمبر ايمان درلودل فرض دي، همدا راز د هغوی پر معجزو هم ايمان درلودل فرض دي.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د معجزې په اړه يو له بل سره بحث وکړي.

## ۲. سحر

## د سحر تعريف

سحر په لغت کې دوکې، باريکۍ، د يوه شي شکل بدلولو او هغه کارته وايي چې ظاهري سبب ونه لري او په اصطلاح کې له هغه خارق العاده کار څخه عبارت دی چې د شيطانانو په مرسته له ناوړه او خبيثو نفسونو له خوا ترسره کېږي.

## د تعريف شرحه

سحر په عربي کې دوکې او هغه نازکه کړنې ته وايي چې ظاهري سبب يې په سترګو نه ښکاري او په اصطلاح کې هغه نا آشنا کار ته ويل کيږي چې د دين څخه لېرې او د بد عمله اشخاصو له خوا ترسره کيږي، د کفري الفاظو په ويلو او د شيطانانو په ملتيا ترې صادريږي چې د ښوونې او زده کړې له لارې ورته لاس رسی پيدا کوي.

که چيرې څوک داسې نا آشنا او خارق العاده کار ترسره کړي چې په هغه کې د لاسونو او حرکاتو چالاکي او يا د خاصو دواګانو استعمال رول ولري حقيقي سحر نه بلل کيږي.

## د سحر حقيقت

د سحر حقيقت په قرآن کريم او نبوي احاديثو او د امت په اجماع سره ثابت دی چې واقعيت لري.

الله ﷻ د موسی عليه السلام د ساحرانو په اړه فرمايي: ﴿قَالَ أَلْقُوا فَلَمَّا أَلْقَوْا سَحَرُوا أَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوهُمْ وَجَاءُوا بِسِحْرٍ عَظِيمٍ﴾[الأعراف: ١١٦] **ژباړه:** موسی عليه السلام ورته وويل: تاسي يې وغورځوئ کله چې هغوی (پړي او همساګانې) واچولې او (په خپلو منترونو ويلو سره يې) د خلکو سترګې مسحورې کړې او په وېره کې يې واچول او ډېر غټ سحر يې وکړ.

په حديث شريف کې راغلي يوکس چې لبيد بن اعصم نوميده پر پيغمبر ﷺ يې سحر کړی و.

د ټول اسلامي امت په دې اجماع ده چې سحر حقيقت لري.

## د سحر زده کړه

د سحر ښوونه او زده کړه حرام کار دی او که سحر په کفري عقيده بناوي، نوبيا يې زده کړه کفر دی او زده کوونکی يې واجب القتل دی.

## د سحر او معجزې تر منځ توپير

د سحر او معجزې تر منځ ډېر توپيرونه شته چې ځينې يې په لاندې ډول دي:

١. سحر له شريرو او پليتو نفسونو څخه صادرېږي، خو معجزه د پاکو، عزتمندو او الله ﷻ ته له ډېرو نژدې نفسونو څخه صادرېږي.
٢. معجزه په ننګونې بناء وي، خو په سحر کې ننګونه نه وي.
٣. د سحر په سر ته رسولو کې د ناروا اعمالو انجامول او له شيطانانو څخه په کې مرسته غوښتل کيږي او معجزه د الله ﷻ په مرسته او ارادې صورت مومي.
٤. سحر د ښوونې او زده کړې له لارې ممکن وي، خو په معجزه کې پيغمبر يوازې له الله ﷻ څخه د هغې د ايجادولو غوښتنه کوي.
٥. معجزه د شي حقيقت بدلوي، خو سحر يوازې د شي ظاهري شکل بدلوي.
٦. په معجزې سره د پيغمبر ريښتينولي ثابتيږي، خو سحر لويه ګناه او د خلکو د ګمراه کولو او په ځمکه کې له فساد خپرولو څخه پرته بله هيڅ ګټه نلري.

۷. سحرپه خاصو شرطونو، ځایونو او وختونو پورې تړلی وي، خو معجزه هیڅ شرط او کوم تاکلی ځای او وخت پورې مربوطه نه وي.

۸. د سحرمعارضه او مقابله کېدای شي، خو د معجزې مقابله محاله ده.[۱]

**فعالیت:** د لوست په رڼاکې د ساحر او نجومي تر منځ څه توپیر معلومیږي؟




۱. معجزه او سحر تعریف کړئ.

۲. د معجزې او سحر تر منځ توپیر واضح کړئ.

۳. د معجزې ډولونه بیان کړئ.

٤. د معجزې حکم بیان کړئ.

٥. د سحر د اثبات دلایل بیان کړئ.

٦. د سحر زده کړه څه حکم لري؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د معجزې او سحر په اړه یوه مقاله ولیکي چې له اتو کرښو کمه نه وي.

---

۱ــ جامع العلوم في اصطلاحات الفنون - (۲ / ۱۲۰)، مذكرة التوحيد - (۱ / ٦۱)

# کرامت او استدراج

آیا پوهېږئ چې کرامت څه ته وایي؟
کرامت او استدراج څه توپیر لري؟

## ۱. کرامت

### د کرامت تعریف

کرامت په لغت کې عـزت او درنـاوي تـه وایـي، الله تعـالی فرمـایي: ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ﴾ [الإسراء: ۷۰] **ژباړه:** بې شکه د آدم اولاد ته مې عزت ورکړی او په اصطلاح کې لـه هغـه خارق العاده کار څخه عبارت دی چې له ولي څخه صادرېږي.[۱]

### د تعریف شرح

عادتاً د ناشوني کار صادرېدل که له داسې شخص څخه سرته ورسېږي چې عقیـده او عمـل یـې د اسلام په تله برابر وي کرامت بلل کېږي او که د شخص عقیده یا عمل له اسلام سره برابـر نـه وي، نو د ده خارق العاده کار کرامت نه دی، بلکې استدراج ګڼل کېږي.

### د کرامت د اثبات دلیل

د اولیاووکرامت په زیاتو دلایلو ثابت دی، لکه چې الله تعالی د مریم علیها السلام په هکله فرمایلي دي: ﴿كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّى لَكِ هَذَا قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ﴾ [آل عمران: ۳۷] **ژباړه:** هرکله به چې زکریاعليه السلام د هغې عبـادت خـانې تـه ورننوتلو له هغې سره به یې څه ناڅه د خوراک او څښاک څه میندل، پوښتنه به یـې ترینـه کوله اې مریمې! دا تا ته له کومه راځي؟ هغـې بـه ځـواب ورکـاوه د الله تعـالی لـه لـوري راغلي دي.

او لکه د اصحاب کهف قصه چې په قرآن کریم کې ذکر شوې ده.

همدا رنګه د صحابه وو په دورکې له بې شمېره صحابه وو څخه ډول ډول کرامات صـادر شوي دي چې تفصیل یې د حدیثو او تاریخ په کتابونو کې بیان شوی دی.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د اصحاب کهف قصه په وار سره بیان کړي.

---

۱ــ التعريفات – (۱ / ۲۳۵)، إتحاف السائل بما في الطحاوية من مسائل – (۳۰ / ۲۱)

## د کرامت حکم

د اولیاوو کرامت د هغوی د تایید، مرستې او د دین د اوچتوالي په خاطر حق او ثابت دی، خو کرامت د ولي په اختیار کې نه وي، نو دا ضروري نه ده چې له هر ولي څخه دې کرامت صادر شي، ځکه چې کرامت د الله تعالی په ارادې او خوښې پورې تړاو لري.

په کرامت باندې کوم نوی حکم نه ثابتیږي.

## ۲. استدراج

## د استدراج تعریف

استدراج په لغت کې قدم په قدم پورته ختلو ته وایي په اصطلاح کې هر هغه خارق العاده کار چې له کافر یا فاسق شخص څخه صادریږي استدراج بلل کیږي.

## د تعریف شرح

که چیرې کوم خارق العاده کار د کافر، فاسق،کاهن، نجومي، ساحر او یا کوډګر شخص څخه صادر شي، استدراج ورته ویل کیږي.

هر څومره چې د دوی سرکشي زیاتیږي په هماغه اندازه ورته الله تعالی خپل نعمتونه پراخوي تر څو قدم په قدم د هلاکت لوري ته نږدې او د الله تعالی تر حجت لاندې راشي، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي: ﴿وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ﴾ [الأعراف: ۱۸۲]. **ژباړه:** او هغه کسان چې زمونږ آیتونه یې دروغ ګڼلي دي، نو هغوی به موږ په داسې تدریجي ډول هلاک کړو چې هغوی به خبر هم نه وي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د کرامت او استدراج تر منځ پر توپیر یو له بل سره بحث وکړي.




۱. ولي چاته ویل کیږي؟
۲. د کرامت د اثبات دلیل وواياست.
۳. الله تعالی کرامت د څه لپاره له ولي څخه صادروي؟
۴. استدراج څه ته وايي؟ تعریف يې کړئ.


**کورنی دنده**

د قرآن کریم د نصوصو په رڼا کې د استدراج څو مثالونه ولیکئ.

# قضاء او قدر

د ایمان له ارکانو څخه یو رکن په قضاء او قدر باندې عقیده درلودل دي.

په قضاء او قدر ایمان درلودل هغه موضوع ده چې د مسلمان په عقیده، کړنو، افعالو او د ژوندانه په ښو او بدو حالاتو ژوره اغېزه لري.

## د قضاء او قدر تعریف

أ. قضاء: په عربي ژبه کې فیصلې، پوره کولو او حتمي والي ته ویل کیږي.

ب. قدر: په عربي ژبه کې حکم، فیصلې او اندازې ته ویل کیږي.

او په اصطلاح کې قضاء او قدر له هغه تقدیر او اندازې څخه عبارت دی چې الله ﷻ د خپل علم په بناء د کایناتو لپاره ټاکلی دی په هغه شان چې د هغه د حکمت غوښتنه وه.

## د تعریف شرح

په عربي ژبه کې قضاء او قدر لفظونه د مختلفو معناګانو لپاره کارول شوي دي، خو د عقایدو په علم کې دواړه هغه مترادف لفظونه دي چې له یو مقصد څخه پرې تعبیر شوی دی.

د قضاء او قدر پر موضوع د ښه پوهېدلو په خاطر د څلورو خبرو پېژندل ډېر اړین دي چې په لاندې توګه بیانیږي:

**۱ـ د الله ﷻ ازلي علم:** په دې خبره ایمان درلودل چې الله ﷻ د هرشي په اجمالي او تفصیلي، ماضي او مستقبل پر ټولو حالاتو عالم او پوه دی، لکه څرنګه چې په خپلو کړنو پوره عالم دی، د خپلو بندګانو په کړنو او افعالو هم پوره علم لري. په تېرو او را تلونکو ټولو واقع کېدونکو پېښو او بدلونونو داسې علم لري چې هېڅ شی یې له علم څخه پټ ندی.

الله ﷻ فرمایلي دي: ﴿عَالِمِ الْغَيْبِ لا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلا فِي الأَرْضِ وَلا أَصْغَرُ مِنْ ذَلِكَ وَلا أَكْبَرُ إِلا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ﴾ [السبأ: ۳]

**ژباړه:** هغه (الله ﷻ) په ټولو پټو پوه دی، له هغه نه د یو بخري په اندازه کوم شی نه په آسمانونو کې پټ دی اونه په ځمکه کې نه له بخري څخه غټ او نه له بخري کوچنی، خو هرڅه په یو څرګند دفتر کې درج دي.

الله ﷻ د مخلوقاتو له پیدایښت څخه لا ډېر مخکې په دې پوره عالم و چې مخلوقات څرنګه اوکله یې پیداکړي او هم د مخلوقاتو د ارزاقو، عملونو لویو، او وړو حرکتونو، خوځښتونو او د هغوی پر اجلونو پوره عالم دی.

**۲ـ په لوح محفوظ کې هر څه لیکل شوي دي:** په دې هم ایمان لرل فرض دي چې الله ﷻ ټول هغه څه چې د مخلوقاتو په اړه ورته معلوم وو په لوح محفوظ کې یې لیکلي دي، او د مخلوقاتو ټول هغه تقدیرونه یې کښلي چې دوی ته پېښېدونکي دي، او یا یې دوی انجاموونکي وي. الله تعالی فرمایلي دي: ﴿وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُسْتَطَرٌ﴾.[القمر: ۵۲، ۵۳]

**ژباړه:** او هر څه چې دوی یې کوي په لوح محفوظ کې لیکل شوي دي او هره کوچنۍ او لویه خبره لیکل شوې ده. [۱]

پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «كَتَبَ اللَّهُ مَقَادِيرَ الْخَلَائِقِ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ بِخَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ...» [۲]

**ژباړه:** الله تعالی دمخلوقاتو تقدیرونه د آسمانونو او ځمکو له پیدایښت څخه پنځوس زره کاله مخکې لیکلي دي.

**۳ـد الله ﷻ خوښه او مشیئت:** په دې ایمان لرل فرض دي چې هیڅ څیز د الله ﷻ د خوښې،ارادې، او مشیئت څخه پرته له عدم څخه وجود ته نشي را تلای، نو څه چې الله ﷻ وغواړي هغه کیږي، او څه چې ونه غواړي، نه کیږي.

الله ﷻ فرمایي: ﴿وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ﴾ [القصص: ۶۸]

**ژباړه:** ستا رب پیدا کوي هر څه چې وغواړي او(هغه په خپله د خپل کار لپاره چاته یې چې خوښه شي) غوره کوي یې.

همدا راز فرمایي: ﴿وَمَا تَشَاءُونَ إِلا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾ [التکویر: ۲۹]

**ژباړه:** اوستاسې په غوښتنه هیڅ نه کیږي ترڅو پورې چې د الله (رب العالمین) خوښه نه وي.

---

۱ــ تفسیر القرطبي - (۱۷ / ۱۴۹)

۲ - صحیح مسلم

**٤ــ د الله ﷻ تخليق:** د الله ﷻ له ذات او صفاتو څخه پرته نور هر څه مخلوق او الله ﷻ يې خالق دی. الله تعالی فرمايلي دي: ﴿اللَّهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [الرعد: ١٦]

**ژباړه:** الله ﷻ د هرشي خالق او پيداکوونکی دی.

د ټولو افعالو خالق الله ﷻ دی او بنده يې کاسب دی. د خير او شر دواړو خالق الله تعالی دی. الله تعالی د خير په کولو خوښيږي، د خير کسب کوونکو سره مرسته کوي او ورسره مينه لري، بالعکس شر بد ګڼي انسانان يې ورڅخه منع کړي دي او د شرکسب کوونکو سره نه مرسته کوي او نه ورسره مينه لري.

## په قضاء او قدر د اثبات دليل

د قضاء او قدر موضوع په بې شمېره آيتونو او احاديثو سره ثابته ده:

الله ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ﴾ [القمر: ٤٩] **ژباړه:** موږ هر څه په اندازه او تقدير سره پيدا کړي دي.

په بل آيت کې الله ﷻ فرمايي: ﴿وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا﴾ [الفرقان: ٢] **ژباړه:** او (الله) هغه ذات دی چې ټول شيان يې پيدا کړي دي او ورته يې اندازه ټاکلې ده.

همدارنګه الله تعالی فرمايي: ﴿لِيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا﴾ [الأنفال: ٤٢] **ژباړه:** د دې لپاره چې فيصله کړي الله تعالی هغه کار چې کېدونکی و.

په حديث شريف کې راځي: «وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ»[1] **ژباړه:** جبرائيل عليه السلام پيغمبر ﷺ ته وويل: او دا چې ته ايمان ولرې د خير او شر په تقدير باندې.

په بل حديث شريف کې راځي: «لَا يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ حَتَّى يَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَهُ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَهُ وَأَنَّ مَا أَخْطَأَهُ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَهُ»[2]

**ژباړه:** هېڅکله يو بنده د ايمان خاوند کېدای نه شي، تر څو چې د تقدير په خير او شر ايمان ونه لري او، تر څو چې په دې ايمان ونه لري، هغه څه چې ده ته رسېدونکي دي هېڅکله نه خطا کيږي او هغه څه چې ده ته رسېدونکي نه دي هېڅکله نه ورته رسيږي.

---

١ - صحيح مسلم - (١ / ٢٨)

٢ - رواه الترمذي

## په قضاء او قدر باندې د ایمان درلودلو حکم

په قضاء او قدر ایمان درلودل فرض دي.

موږ په دې ټینګ باور لرو چې الله ﷻ د مخلوقاتو له پیدایښت څخه مخکې د مخلوقاتو په اړه پوره علم درلود او په دې هم عقیده لرو چې الله ﷻ د ټولو انسانانو پوره احوال په لوح محفوظ کې لیکلي دي او په دې هم باوري یو چې هیڅ شی د الله ﷻ له علم او ارادې څخه پرته وجود ته نه شي راتلای. همدارنګه الله ﷻ د خیر او شر دواړو خالق او پیدا کوونکی دی او انسان ته یې د خیر او شر په کولو کې اختیار ورکړی دی. که یې خیر وکړ ورسره مرسته او محبت کوي او که یې په شر لاس پورې کړ، الله ﷻ ورسره مرسته او محبت نه کوي. پیغمبر ﷺ فرمايي: «**والذي نفسي بيده، لو جاءت الأمة لتنفعك بغير ما كتب الله لك ما استطاعت ذلك، ولو أرادت أن تضرك بغير ما كتب الله لك ما استطاعت ذلك**»[1] **ژباړه:** زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما روح د ده په واک کې دی، که چېرې ټول امت را ټول شي د دې لپاره چې تاته ګټه ورسوي او هغه ګټه الله تعالی تاته نه وي لیکلې، نو دا کار د دوی په وس کې نه دی پوره او که چېرې دوی اراده وکړي چې تاته څه زیان ورسوي او هغه زیان الله تعالی تاته نه وي لیکلی، نو دا کار هم د دوی په توان کې نه دی پوره.




۱. قضاء او قدر تعریف کړئ.
۲. د قضاء او قدر د اثبات دلایل ووایئ
۳. په قضاء او قدر باندې د ایمان حکم واضح کړئ.
٤. که څوک له قضاء او قدر څخه منکر شي څه حکم لري؟



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د قضاء او قدر په اړه یوه مقاله ولیکي چې له اتو کرښو څخه کمه نه وي.

---

۳- القدر للفريابي - (۱ / ۱۳۵)

# د برزخ حالات

هر انسان له مرگ څخه وروسته د ژوند دوه مرحلې لري له مرگ څخه وروسته د قیامت تر ورځې پورې چې دې مرحلې ته د برزخ ژوند وايي او بیا له قیامت څخه وروسته چې اوږد او ابدي ژوند پیل شي، په دې لوست کې به د برزخ د حالاتو په هکله معلومات لاس ته راوړئ.

## ۱. د برزخ تعریف

برزخ په لغت کې پردې او حائل ته وايي او د عقایدو د علم په اصطلاح کې د دنیوي او اخروي ژوند تر منځ (له مرگه وروسته تر بیا ژوندي کېدو پورې) مرحلې ته برزخ ویل کیږي.

## د تعریف شرح

له نبوي احادیثو څخه دا جوتیږي: انسان چې له دې نړۍ څخه سترگې پټې کړي هغه گړۍ بېرته ژوندی شي که نېکو کاره مؤمن وي، د خوښۍ د حالاتو احساس کوي او په قبر کې هم په ډول ډول نعمتونو سره نازول کیږي او که بد کرداره او کافر وي د غم او خواشینۍ احساس کوي او په قبر کې په ډول ډول عذابونو سره سزا ورکول کیږي چې د قبر همدې حالاتو ته برزخ ویل کیږي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د برزخ د لغوي او اصطلاحي تعریفونو تر منځ اړیکه ووايِي.

## د برزخ د اثبات دلیل

د برزخ پړاو د قرآن کریم په مبارکو آیتونو او د نبي کریمﷺپه مبارکو احادیثو باندې ثابت دی.

الله تعالی د المؤمنون په سورت کې فرمایلي دي:﴿وَمِنْ وَرَائِهِمْ بَرْزَخٌ إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ﴾ [المؤمنون: ۱۰۰] **ژباړه:** او په مخ کې د دوی د برزخ (قبر) پرده ده (چې دوی نه پرېږدي دنیا ته رجوع وکړي) تر هغې ورځې پورې چې هغوی په قیامت کې را پاڅول کیږي.

## ۲. نَکِیْر او مُنْکَرْ

### د نَکِیْر او مُنْکَرْ پېژندنه

نکير او منکر د الله تعالی دوه ملکې دي، الله تعالی دا دوه ملکې له مړو څخه په قبر کې په پوښتنه کولو ګمارلې دي، د نبي کريمﷺ د حديث له مخې يې رنګونه تور او سترګې يې شنې دي.

### له مړي څخه په قبر کې پوښتنې کول

کله چې مړی په قبر کې ښخ کړل شي او خلك ورڅخه بېرته وګرځي، نو ده ته نوموړې دوې ملکې راځي(مکلف مړی د الله تعالی په امر سره بېرته را ژوندی کېږي، خپل عقل او پوهه يې بېرته ورته را ګرځي) او له ده څخه د رب، دين او نبي په هکله پوښتنې کوي، که چېرې مړي د دغو پوښتنو صحيح ځواب ورکړ او بريالی شو، نو د الله تعالی له خوا ورته نعمتونه ورکول کېږي او وروستي پړاوونه پرې آسانېږي او که ناکام شو، نو عذاب ورکول کېږي او وروستي پړاوونه يې هم سختېږي.

### په قبر کې د پوښتنو کولو د اثبات دليل

په قبر کې له مړي څخه د نکير او منکر سوال کول په قرآن کريم او د نبي کريمﷺ په مبارکو احاديثو سره ثابت دی.

**قرآن کريم:** الله تعالی په دې اړه په قرآن کريم کې فرمايلي دي: ﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ﴾ [إبراهيم: ۲۷] ] **ژباړه:** الله تعالی به مؤمنان په نړدې ژوند او په آخرت کې په ثابته (د توحيد کلمه ورڅخه مراد ده) وينا کلك او ثابت قدمه کړي. نبي کريمﷺ څرګنده کړې ده چې دلته له آخرت څخه مراد قبر دی، ځکه قبر د آخرت له منازلو څخه لومړنی منزل دی.

**حديث شريف:** حضرت ابو هريره رضی الله تعالی عنه روايت کوي چې رسول اللهﷺ وفرمايل: «إِذَا أُقْبِرَالْمَيِّتُ أَتَاهُ مَلَكَانِ أَسْوَدَانِ أَزْرَقَانِ يُقَالُ لِأَحَدِهِمَا الْمُنْكَرُ وَالْآخَرُ النَّكِيرُ فَيَقُولَانِ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ فَيَقُولُ: هُوَ عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ فَيَقُولَانِ قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ هَذَا ثُمَّ يُفْسَحُ لَهُ فِي قَبْرِهِ سَبْعُونَ ذِرَاعًا فِي سَبْعِينَ ثُمَّ يُنَوَّرُ لَهُ فِيهِ ثُمَّ يُقَالُ لَهُ نَمْ فَيَقُولُ أَرْجِعُ إِلَى أَهْلِي فَأُخْبِرُهُمْ فَيَقُولَانِ نَمْ كَنَوْمَةِ الْعَرُوسِ الَّذِي لَا يُوقِظُهُ إِلَّا أَحَبُّ أَهْلِهِ إِلَيْهِ حَتَّى يَبْعَثَهُ اللَّهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ وَإِنْ كَانَ مُنَافِقًا قَالَ سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ فَقُلْتُ

مِثْلَهُ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ ذَلِكَ فَيُقَالُ لِلْأَرْضِ الْتَئِمِي عَلَيْهِ فَتَلْتَئِمُ عَلَيْهِ فَتَخْتَلِفُ فِيهَا أَضْلَاعُهُ فَلَا يَزَالُ فِيهَا مُعَذَّبًا حَتَّى يَبْعَثَهُ اللَّهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ»[1] **ژباړه:** کله چې مړی په قبر کې کېښودل شي، نو دوې ملکې ورته راشي چې تورې څېرې او شنې سترګې لري، يوې ته نکير او بلې ته منکر ويل کيږي، هغوی به پوښتنه وکړي: تا ددې سړي په شان کې څه ويل؟ نو هغه به ځواب ورکړي، دا د الله تعالی بنده او د هغه رسول دی. زه شاهدي وايم چې له الله تعالی نه پرته بل بر حق معبود نشته او شاهدي وايم په دې چې محمدﷺ د هغه بنده او د هغه رسول دی، نو پرښتې به ووايي موږ پوهېدو چې ته به همدا وايې. له هغه وروسته به د هغه قبر اويا ګزه په اويا ګزو کې پراخه او ورته رڼا کړای شي، بيا به ورته ووايي چې ويده شه، نو دی به ووايي زه ځم خپلې کورنۍ ته چې د خپل حال زېرى ورکړم، نو پرښتې به ورته ووايي: ته د هغې ناوې غوندې ويده شه چې د خپلې کورنۍ د ډېر ګران فرد نه پرته بل څوک يې نه شي ويښولای. (د دغه مړي به همدغسې حالت وي) تر هغه وخته چې الله تعالی يې له دغه آرامځي څخه پاځوي او که دا مړی منافق وي نو په ځواب کې به وايي چې له خلکو مې اورېدل چې هغوی ويل ما هم همغسې ويل. نه پوهېدم چې څوک دی، نو پرښتې به وايي موږ پوهېدو چې ته به همداسې وايې. بيا به ځمکې ته وويل شي پر ده باندې را تنګه او راجوخته شه. نو داسې به پرې راتنګه شي چې د ده پښتۍ به سره تېرې ببرې شي، په همدې عذاب کې به تر هغې پورې اخته وي چې الله تعالی يې له دغه استوګنځي نه را پاځوي.

### ۳. د قبر نعمتونه او عذاب

### د قبر پېژندنه

سره له دې چې قبر په مشهوره اصطلاح کې د ځمکې هغې برخې ته ويل کيږي چې مړی پکې ښخ شوی وي، خو د نعمتونو او عذابونو د اثبات په بحث کې قبر له مرګ څخه وروسته د مړي د شتون ځای ته ويل کيږي، که هغه ريښتينی قبر وي او که بل ځای وي، لکه چې څوک په اوبو کې مړ شي او اوبه يې يوسي او يا څوک له مرګه وروسته ځناور وخوري، ياپې څوک وسوځوي او داسې نور.

---

۱ - رواه الترمذي.

الله تعالی فرمایي: ﴿وَأَنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُورِ﴾ [الحج: ٧] **ژباړه:** او الله تعالی د قبرونو والا خامخا راپاڅوي.

په دې آیت کې له قبرونو څخه عامه معنا مراد ده، په دې توگه چې الله تعالی مړي هرو مرو راپاڅوي که هغه په ځمکه کې ښخ وي، که سوځېدلي وي او که ځناورو خوړلی وي.

## د قبر د نعمتونو او عذابونو د اثبات دلیل

د قبر نعمتونه د قرآن کریم په مبارکو آیتونو او د نبي کریمﷺ په مبارکو احادیثو باندې ثابت شوي دي.

۱ـ الله تعالی په قرآن کریم کې د قبر د نعمتونو په اړه فرمایلي دي: ﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ﴾ [إبراهيم: ٢٧] **ژباړه:** الله تعالی به مؤمنان په نړۍ ژوند او په آخرت کې په ثابته وینا کلك او ثابت قدمه کړي.

۲ـ نبي کریمﷺ د قبر په اړه فرمایلي دي: «إنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ، أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ»[1] **ژباړه:** په یقیني توگه قبر یا د جنت له باغچو څخه یوه باغچه ده او یا د دوزخ له کندو څخه یوه کنده ده.

۳ـ نبي کریمﷺ په دوو قبرونو تېرېده، نو ویې فرمایل: «إِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ أَمَّا أَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ الْبَوْلِ وَأَمَّا الْآخَرُ فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ»[2] **ژباړه:** دغه دواړه (مړي) په عذاب کې دي د داسې لویې گناه له امله ورته عذاب نه ورکول کېږي؛ یوه به د خپلو تشو متیازو (له څاڅکو) څخه ځان نه ساته او بل به چغلي کوله.

## په برزخ، نکیر او منکر او د قبر په نعمتونو او عذاب د ایمان حکم

په برزخ او ټولو هغو شیانو چې په برزخ کې واقع کېږي او نبي کریمﷺ موږ پرې خبر کړي یو لکه په قبر کې د نکیر او منکر له خوا له مړي څخه پوښتنې کول، د قبر عذاب او نعمتونه په دې ټولو ایمان راوړل فرض دي.

---

١ - رواه الترمذي.

٢ - صحيح البخاري ت - (١ / ٢٢٩)




۱. برزخ تعریف کړئ.
۲. د برزخ د اثبات لپاره دلایل ذکر کړئ.
۳. په قبر کې د پوښتنې کوونکو ملایکو نومونه څه دي؟
٤. له مړي څخه په قبر کې ملایکې د څه شي پوښتنې کوي؟
٥. د قبر د سوال په هکله یو نقلي دلیل بیان کړئ.
٦. قبر تعریف کړئ.
۷. د قبر د نعمتونو په هکله یو نقلي دلیل ووایئ.
۸. د قبر د عذاب په هکله یو نقلي دلیل ووایئ.
۹. په پورتنیو موضوعاتو د ایمان حکم بیان کړئ.


**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د برزخ د حالاتو په اړه یوه مقاله ولیکي چې له لسو کرښو کمه نه وي.

# بعث او حشر

مسلمانان ټول په دې کلك ایمان لري، هغه غیبي حالات چې الله ﷻ په قرآن کریم کې او پیغمبر ﷺ په احادیثو کې بیان کړي حق دي، لکه: بعث، حشر، د اعمالو تلل، جنت، دوزخ او داسې نور.

## ۱. بعث

**د بعث تعریف:** په لغت کې لیږلو، راپاڅولو او ژوندي کولو ته وایي او په شرع کې جسدونو ته د ارواحو بېرته راګرځولو او له قبرونو څخه انسانان راپاڅولو ته بعث ویل کیږي.

### د تعریف شرح

بعث، نشور، نشأة ثانية او معاد مترادف الفاظ دي چې د یوه حالت لپاره په قرآن کریم کې ذکر شوي او هغه پس له مرګه د مړو را ژوندي کېدل دي، ټول مړي به د الله ﷻ په امر له قبرونو څخه راولاړیږي او ارواح به یې له خپلو جسدونو سره بیا یو ځای کېږي چې له دغه حالت څخه په قرآن کریم او احادیثو کې کله د بعث، کله د نشر او نشور او کله هم ورڅخه د نشأة ثانية (دویم ځل ژوندون) په لفظ تعبیر شوی دی.

### د بعث د اثبات دلیل

الله ﷻ فرمايي: ﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ﴾ [المؤمنون: ١٦] **ژباړه:** بیا به تاسې د قیامت په ورځ راپاڅول شئ.

په بل آیت کې الله ﷻ فرمايي: ﴿وَأَنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُورِ﴾ [الحج: ٧] **ژباړه:** او بېشکه الله ﷻ راپاڅوي هغه خلك چې په قبرونو کې دي.

### په بعث ایمان درلودل

په بعث ایمان درلودل د ایمان اساسي رکن دی، نو له مرګ څخه وروسته په بیا ژوندي کېدو ایمان درلودل فرض دي، هر څوك چې له بعث څخه منکر وي کافر دی.

## ۲. حشر

**د حشر تعریف:** حشر په لغت کې د قیامت په ورځ د فیصلې او حساب لپاره د انسانانو راټولېدلو ته ویل کیږي.

## د تعریف شرح

د قیامت په ورځ د انسانانو موقف او د محشر میدان ته راټولولو او راجمع کولو ته حشر ویل کیږي، انسانان به ټول د محشر په میدان کې د دې لپاره راجمع کېږي، تر څو له دوی سره د دوی د اعمالو حساب وشي، د نېکانو نیکي و تلل شي او د بدانو بدي او هغوی ته خپلې عملنامې په ښي یا کیڼ لاس کې ورکړل شي.

د دوی تر منځ به د دې فیصله او پریکړه وشي چې څوک د جنت مستحق دي او څوک د جهنم چې دې ته لوی حشر هم ویل کیږي.

## د حشر د اثبات دلیل

د قیامت په ورځ حشر په بې شمېره دلایلو ثابت دی.

الله ﷻ فرمايي: ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾ [البقرة: ۲۰۳] **ژباړه:** او ښه پوه شئ بېشکه تاسې به د الله ﷻ حضور ته راټولیږئ.

په بل آیت کې فرمايي: ﴿وَهُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾ [المؤمنون: ۷۹]

**ژباړه:** او الله ﷻ هغه ذات دی چې تاسې يې په ځمکه کې خواره واره پیدا کړي یاستئ، بیا به همده ته راجمع کیږئ.

رسول الله ﷺ په خپل یو مبارک حدیث کې فرمایلي دي: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ إِلَى اللَّهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا»[1] **ژباړه:** اې خلکو بېشکه تاسې به په داسې حال کې چې پښې به مو لوڅې وي، په بدن باندې به مو کالي نه وي، سنت شوي به نه یاست الله تعالی ته به راټولیږئ.

## حشر به د چا کیږي؟

حشر به له انسانانو، پیریانو او له ټولو ژوندیو مخلوقاتو سره سر ته رسیږي، کله چې څاروي او نور ژوي یو له بل څخه د خپلو ظلمونو غچ واخلي، نو دوی به بیا مړه شي او یوازې انسانان به په محشر کې پاتې شي لکه چې الله ﷻ فرمايي: ﴿وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ﴾ [التکویر: ۵] **ژباړه:** او (یاد کړه هغه ورځ) کله چې وحشي ژوي راجمع کړل شي. په بل آیت کې فرمايي: ﴿وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ مَا فَرَّطْنَا فِي

---

۱ - صحیح البخاري ت - (۱۱ / ۲۴۸)

**الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ﴾** [الأنعام: ٣٨] **ژباړه:** په ځمکه کې خوځېدونکي کوم ساکښ او په هوا کې په وزرونو سره الوتونکي کوم مرغه ته وګورئ، دا ټول همدا ستاسې په څېر انواع او ډولونه دي، موږ د هغو د تقدیر په لیکنه کې څه نیمګړتیا نده پرې ایښې. بیا به دا ټول د خپل رب لوري ته راغونډېږي.

**حدیث:** په حدیث شریف کې راځي: د ابو ذر رضي الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبرﷺ دوه پسونه ولیدل چې یو بل یې په ښکرو ووهل. پیغمبرﷺ و فرمایل: اې أبو ذره ته پوهېږې چې دوی ولې یو بل په ښکرو وهي؟ ما وویل نه پوهېږم. پیغمبرﷺ وفرمایل: خو الله ﷻ پوهېږي چې ولې دوی یو بل په ښکرونو وهي او نژدې ده چې د دوی تر منځ فیصله وکړي.[1] په بل حدیث کې د هغه چا په حق کې راځي چې د خپلو څارویو څخه زکات نه ورکوي: اوښان به خپل مالکان د پښو لاندې کوي او وزې به خپل مالکان په پښو او ښکرو باندې وهي.[2] په بل روایت کې راځي: کله چې الله ﷻ وحشي حیوانات راټول کړي او دوی یو له بل څخه خپلې بدلې او غچ واخلي بیا به ورته الله تعالی امر وکړي چې خاورې شئ، هغوی به خاورې شي، نو په دغه وخت کې به کافر د دې ارمان وکړي چې کاش زه هم خاورې شوی وای.[3]




١. بعث تعریف کړئ.
٢. حشر تعریف کړئ.
٣. د بعث او حشر د اثبات دلیلونه ووایئ.
٤. د بعث او حشر تر منځ توپیر واضح کړئ.
٥. الله تعالی به د قیامت په ورځ څوک حشر کوي؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د بعث او حشر په اړه له قرآن کریم څخه نور دلایل ووایي چې په کتاب کې نه دي ذکر شوي.

---

١ – مسند احمد.

٢ – متفق علیه.

٣ – تفسیر بحر العلوم د ابو اللیث السمرقندي. کتاب ١/ ٤٦٧ تفسیر طبري.

یوولسم لوست

# د پیغمبرﷺ شفاعت

آیا پوهیږئ چې شفاعت څه ته وایي؟ او شفاعت په څو ډوله دی؟ او پیغمبرﷺ به شفاعت څه وخت او د چا لپاره کوي؟

د دې لپاره چې په پورتنیو مطلبونو ښه پوه شو، لاندې لوست لولو.

## د شفاعت تعریف

شفاعت په لغت کې له چا څخه د بل لپاره د نېکۍ کولو او جرم او خطا د بښلو غوښتلو ته وایي.

او د عقایدو د علم په اصطلاح کې له الله تعالی څخه د قیامت په ورځ غوښتنه ده، څو د یوه چا له خطاوو څخه تېر شي او ښښنه ورته وکړي

په دې ځای کې له شفاعت څخه مرا د زموږ د خوږ پیغمبر حضرت محمدﷺ شفاعت مراد دی چې د قیامت په ورځ به یې د ټولو خلکو لپاره په عامه توګه او د خپلو امتیانو لپاره په خاصه توګه د الله تعالی په دربار کې تر سره کوي او الله تعالی به د خپلې مهربانی له مخې او د پیغمبرﷺ د اعزاز په موخه د هغه سفارش قبلوي.

## د شفاعت د اثبات دلیل

د پیغمبرﷺ شفاعت په قرآن کریم، نبوي احادیثو او د امت په اجماع سره ثابت دی.

الله ﷻ فرمایي: ﴿عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا﴾ [الإسراء: ۷۹] **ژباړه**: نږدې ده چې ستا څښتن به تا ستایل شوې ځای ته ورسوي.

حضرت عبدالله بن مسعود، حذیفة بن الیمان، عبدالله بن عمر، سلمان فارسي او جابر بن عبدالله رضی الله عنهم ویلي چې له ((مقام محمود)) څخه د پیغمبرﷺ شفاعت کبری مراد دی.

د پیغمبرﷺ د شفاعت په باره کې دومره زیات احادیث راغلي چې د تواتر اندازې ته رسیږي، لکه چې پیغمبرﷺ فرمایلي دي: «أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَوَّلُ مَنْ يَنْشَقُّ عَنْهُ الْقَبْرُ وَأَوَّلُ شَافِعٍ وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ». [۱]

ژباړه: زه به د قیامت په ورځ د آدم عليه السلام په اولاده کې سردار یم او زه به لومړی هغه څوک یم چې له قبر څخه راپاڅیږي [۲] او زه به لومړی هغه څوک یم چې شفاعت به کوم او لومړی هغه څوک به یم چې شفاعت یې قبلیږي.

---

۱ - صحیح مسلم - ۷ / ۵۹

۲_ تفسیر زاد المسیر للامام ابن الجوزی رح- (۵ / ۷۶) و تفسیر النکت والعیون للامام الماوردي البصري (۳ / ۲۶۵)

## د پیغمبرﷺ د شفاعت ډولونه

الله تعالی حضرت محمدﷺ ته د دوه ډوله شفاعتونو اعزاز ور په برخه کړی دی:

۱. شفاعت کبری.
۲. شفاعت صغری.

### ۱. شفاعت کبری

کله چې ټول انسانان د محشر په میدان کې د خپلو اعمالو د حساب لپاره راټول شي، په دې انتظار کې وي چې کله به الله تعالی له دوی سره د اعمالو محاسبه شروع کوي او له ډېرې ویرې او هیبت څخه به په ډېر لوی مشقت او غم کې پراته وي، آن تر دې چې د دوی انتظار به تر ځلوېښتو کلونو پورې وغځېدل شي، دوی به په دې هڅه کې شي چې څوک داسې پیداکړي چې الله تعالی ته د دوی په هکله شفاعت وکړي، نو له نورو ټولو هڅو وروسته به انسانان د پیغمبرﷺ حضور ته راشي او ورڅخه به وغواړي څو له الله تعالی څخه غوښتنه وکړي چې له دوی سره محاسبه شروع کړي، بیا به پیغمبرﷺ الله تعالی ته په سجده پرېوځي او الله تعالی ته به دومره عذر او زارئ وکړي چې الله تعالی به ووایي: اې محمده! سر را پورته کړه هر څه چې غواړې درته به درکړل شي اوشفاعت به دې قبول کړل شي. پیغمبرﷺ به الله تعالی ته له انسانانو سره د حساب کولو شفاعت وکړي او الله تعالی به یې قبول کړي.

**فعالیت:** آیا امتونه به له نورو پیغمبرانو څخه هم د شفاعت کولو غوښتنه کوي؟ په دې هکله مو څه اورېدلي، په نوبت سره یې بیان کړئ.

### ۲. شفاعت صغری

له شفاعت صغری څخه مراد د پیغمبرﷺ هغه شفاعت دی چې د نورو بیلا بیلو خلکو لپاره به یې کوي چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱. د ټولو مؤمنانو لپاره جنت ته د تللو په هکله شفاعت.
۲. د هغه چا لپاره شفاعت چې نېکۍ او بدۍ یې برابرې وي، نو د دوی په هکله به شفاعت کوي، تر څو جنت ته داخل کړل شي.
۳. د خپل امت د ګناهکارو لپاره شفاعت، تر څو الله تعالی یې ګناهونه وروبښي او له دوزخ څخه یې راوباسي او جنت ته یې داخل کړي.

٤. د نیکانو د درجو او مرتبو د لا اوچتولو لپاره د پیغمبرﷺ شفاعت.
٥. د پیغمبرﷺ شفاعت د ځینو خلکو لپاره، تر څو بې له محاسبې جنت ته وردننه شي.
٦. د عذاب له مستحقینو څخه د عذاب د تخفیف لپاره شفاعت.[1]

### د پیغمبرﷺ د شفاعت شرطونه

د پیغمبرﷺ د شفاعت لپاره د دریو شرطونو وجود لازمي دی:

١. **د قیامت ورځ:** پیغمبرﷺ به شفاعت د قیامت په ورځ کې کوي، هغه څوک چې د دنیا په چارو کې د پیغمبرﷺ د شفاعت غوښتنه کوي هغه په خطا دی.

٢. **د الله تعالی اجازت:** د شفاعت لپاره ضروري ده چې اللهﷻ به د شفاعت کولو اجازت ورکړي، لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿مَنْ ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ﴾ [البقرة: ٢٥٥].
**ژباړه:** څوک دی چې د هغه په وړاندې د هغه له اجازې پرته شفاعت وکړای شي؟
په يو بل آيت کې الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ﴾ [سبأ: ٢٣].
**ژباړه:** او د الله تعالی په حضور کې هیڅ شفاعت د چا لپاره ګټور ثابتیدای نشي، خو دا چې الله تعالی چاته د شفاعت اجازه ورکړي.

٣. **د الله تعالی رضامندي له هغه چا څخه چې په اړه يې ځانګړی شفاعت کیږي:** څوک چې له چا څخه الله تعالی تل ناراضه وي د هغه لپاره د پیغمبرﷺ ځانګړی شفاعت نشته.

البته شفاعت کبری چې د ټولو انسانانو حساب کتاب په هغه سره پیلیږي، دا شفاعت عام دی.




١. شفاعت تعریف کړئ.
٢. د پیغمبرﷺ د شفاعت ډولونه ووایاست.
٣. د پیغمبرﷺ په شفاعت به کوم اشخاص له دوزخ څخه راوځي؟
٤. د شفاعت شرطونه څو دي؟ بیان يې کړئ.

### کورنی دنده

زده کوونکي دې د احادیثو کتابونو ته مراجعه وکړي او د پیغمبرﷺ د شفاعت کبری قصه دې پوره ولیکي.

---

١ــ شرح العقيدة الطحاوية – (١ / ٢٠٣)

دولسم لوست

# غیبت لویه ګناه ده

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ﷛ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ قَالَ: { أَتَدْرُونَ مَا الْغِيبَةُ }؟. قَالُوا: اَللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: { ذِكْرُكَ أَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ }. قِيلَ: أَفَرَأَيْتَ إِنْ كَانَ فِي أَخِي مَا أَقُولُ؟ قَالَ {إِنْ كَانَ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ فَقَدْ بَهَتَّهُ }. (رواه مسلم).

**د راوي لنډه پېژندنه**

د حديث شريف راوي حضرت ابو هريره﷛ دی چې نوم يې عبد الرحمن، د پلار نوم يې صخر، د دوس له قبيلې سره يې تړاو درلود، په کنيه (ابوهريره) سره يې شهرت درلود، د هجرت په اووم کال يې اسلام منلی دی. ډېر احاديث يې له رسول الله ﷺ څخه ياد او روايت کړي دي، تر دې چې د حديث امام ورته ويل کېږي. د هجرت په اوه پنځوسم کال کې يې له فاني دنيا څخه سترګې پټې کړې.

**د ځينو کلمو معناوې**

أَتَدْرُونَ: آيا تاسې پوهېږئ ؟

الْغِيبَةُ: د يوه چا يادونه په کمی سره د هغه په غياب کې.

بِمَا يَكْرَهُ: په هغه څه سره چې هغه يې بد ګڼي.

أَفَرَأَيْتَ: خبر راکړه.

بَهَتَّهُ: تور او تهمت دې پرې ولګاوه.

**د حديث شريف ژباړه**

له حضرت ابي هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ له خپلو اصحابو څخه وپوښتل: آيا تاسو پوهېږئ چې غيبت څه ته وايي؟ هغوی په ځواب کې وويل: الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهېږي. رسول الله ﷺ وويل: خپل مسلمان ورور په هغه څه سره يادول چې بد يې ګڼي غيبت بلل کيږي. له پيغمبر ﷺ څخه پوښتنه وشوه: که چيرې زما په ورور کې هغه څه شتون ولري چې زه يې يادونه کوم؟ پيغمبر ﷺ ووېل: که چيرې په هغه کې هغه څه وي چې ته يې يادونه کوې، بې له شکه تا يې غيبت وکړ او که چيرې په هغه کې هغه څه نه وي چې ته يې يادونه کوې، نو يقيناً تا هغه پورې تور وتاړه.

**د حديث شريف حکمت**

په دې حديث کې پيغمبرﷺ خپل امت ته لارښوونه کوي چې په خپلو منځونو کې يو د بل عزت او پت ته په ټينګه پاملرنه وکړي او په ځانګړې توګه هر مسلمان بايد خپله ژبه د خپل مسلمان ورور د نيمګړتياوو او کميو له څرګندولو څخه وژغوري او په خاصه توګه مسلمان بايد له غيبت کولو څخه ځان وساتي، ځکه غيبت داسې مرض دی چې په ټولنه کې د خلکو ترمنځ اختلاف راپيدا کوي او د مسلمانې ټولنې وحدت او يووالي ته زيان رسوي، په دې اساس زموږ پيغمبرﷺ له داسې عمل څخه منعه کړې ده او مسلمانان يې دې ته متوجه کړي دي چې په مسلمانه ټولنه کې بايد څوک د چا د سپکاوي په فکر کې نه وي، بلکې د اخلاص او صميميت په فضا کې به ژوند تېروي، نو ټولنه به د ټولو هغو ناخوالو څخه پاکه او په امن کې وي چې د اختلاف او شخړو لامل ګرځي او همدا د اسلام غوښتنه ده.

**د حديث شريف ګټې**

**۱ – د اسلام سمه زده کړه**

اصحابو کرامو به تل زيار ايسته چې، ترڅو په سمه توګه دين زده کړي، له دې کبله يې له پيغمبرﷺ څخه وغوښتل چې د غيبت په معنا سم ځان پوه کړي او ورڅخه يې وپوښتل چې دوی ته مسئله روښانه کړي، نو په هر مسلمان باندې لازم دي، تر څو د دين احکام په سمه توګه زده کړي.

**۲ – له ناروااوو څخه ځان خبرول**

مسلمان بايد د دين له اوامرو او نواهيو دواړو څخه ځان خبر کړي، ترڅو په اوامرو عمل وکړي او له ناروا چارو څخه ځان وساتي.

**۳ – دغيبت معنا:** د مسلمان ورور په غياب کې هغه نيمګړتياوې په ګوته کول چې هغه يې بدې ګڼي او پرې خپه کيږي، دې ته غيبت ويل کيږي.

**۴ - غيبت ناروا عمل دی**

غيبت کول د مړ مسلمان ورور د غوښې خوړلو په څېر دي، لکه چې په حجرات سورت کې الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَحِيمٌ﴾ [الحجرات:۱۲]

**ژباړه:** او یو د بل غیبت مه کوئ آیا یو له تاسو څخه د خپل مړ ورور غوښه خوړل خوښوي؟ نو (نه) بلکې بد یې ګڼئ او له الله تعالی څخه ووېرېږئ، یقیناً الله تعالی ښه توبه قبلوونکی مهربان ذات دی.

**۵ – مسلمانان سره وروڼه دي**

یو مسلمان د بل مسلمان ورور دی، **لکه** څرنګه چې په حجرات سورت کې الله فرمايي:

﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ [الحجرات:۱۰]

**ژباړه:** مؤمنان سره وروڼه دي، نو تاسې د خپلو وروڼو ترمنځ صلحه راولئ او له الله تعالی څخه ووېرېږئ چې تر څو پر تاسې رحم وشي.

مؤمنان تل د دیني ورورئ پر اساس په خپلو منځو کې مینه او لورینه لري او یو بل ته د ښېګڼې رسولو په فکر کې وي او هر یو د خپل مسلمان ورور سره مرسته کوي او د زیان ور رسولو څخه یې ځان ساتي.

**٦ – تهمت (تور) لګول لويه ګناه ده**

**تهمت:** د مسلمان په هکله هغه نا وړه څرګندونه ده چې په هغه کې دغه نيمګړتيا نه وي او ورپورې تړل کيږي داسې څرګندونه تهمت بلل کيږي.

تهمت لويه ګناه ده او په پورتني حديث کې له غيبت کولو څخه يې وبال زيات ښودل شوی دی.

**ځینې څرګندونې غیبت نه بلل کیږي**

د دين علماء د دلايلو په رڼا کې لاندې څرګندونې غيبت نه بولي:

**۱ – له ظالم څخه د مظلوم شکایت**

کله چې مظلوم له ظالم څخه شکايت کوي، د هغه د تېري څرګندونه هغه چا ته کوي چې ورسره مرسته کولای شي غيبت نه بلل کيږي.

**۲ – د ناروا وو د مخنيوي په موخه يادونه**

تر څو دغه نا مشروع کار له منځه لاړ شي او په کې اخته خلک ترېنه منعه شي.

**٣ – د فتوی غوښتنه**

په یوه مسئله کې یو څوک له عالم څخه پوښتنه کوي، ترڅو پرې پوه شي، د مثال په توګه وایي: چې دغه کس پر ما تېری کوي او حق مې خوري او ظالم دی، د خلاصون لار راته وښایه.

**٤ – د مشورې غوښتنې پر اساس د چا په هکله حقیقت ویل**

چا ته د یوه کس په اړه د حقیقت ویلو په ترڅ کې د هغه نیمګړتیاوې په ګوته کول چې اهلیت لري او که نه او یا د اعتماد وړدی او که نه، غیبت نه بلل کیږي.

**٥– د یوه کس بې دیني څرګندول:**

تر څو د هغه له ناسمو اعمالو څخه مسلمانان خبر شي او ځان ورڅخه وژغوري.

**٦ – په هغه صفت او نښې سره د یوه کس یادونه چې پرې شهرت لري**

که چیرې څوک په کوم صفت سره شهرت ولري او پرې پیژندل کیږي او له یادونې څخه یې د هغه سپکاوی هدف نه وي، بلکې پېژندنه یې هدف وي چې له نورو څخه یې توپیر وشي، لکه هغه فلانی چې ګوډ دی.




١ – د غیبت معنا ووایاست.

٢ – د غیبت اوتهمت ترمنځ توپیر ووایاست.

٣ – غیبت کول په قرآن کریم کې له څه سره تشبیه شوی دی؟

٤ – په کومو حالاتو کې د چا په هکله څرګندونې غیبت نه بلل کیږي؟



**کورنۍ دنده**

پورتنی حدیث له ژباړې سره په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# مسلمان د مسلمان هنداره ده

**حدیث:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلى الله عليه وسلم: إِنَّ أَحَدَكُمْ مِرْآةُ أَخِيْهِ، فَإِنْ رَأَى بِهِ أَذىً فَلْيُمِطْهُ عَنْهُ. رواه الترمذی.

**د کلمو معناوې**

**مِرْآةُ:** هنداره (آیینه)

**اذیً:** عیب (نیمګړتیا)

**فليُمِطْهُ عَنْهُ:** لېرې دې کړي له هغه څخه

**د حدیث شریف ژباړه**

له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: تاسې هر یو د خپل مسلمان ورور هنداره یاست، که چا په خپل مسلمان ورور کې څه عیب ولید، ورڅخه دې لېرې کړي.

**د حدیث حکمت**

انسان په عامه توګه کمزوری مخلوق دی، له نیمګړتیاوو څخه خالي نه وي، پرهمدې اساس په پورتني حدیث کې مسلمان ته لارښوونه کېږي چې خپل ځان ته متوجه وي او ځان د دین له لارې کمال ته ورسوي او هغه داسې کېدای شي چې په خپل مسلمان ورور باور ولري او د هغه نصایحو ته غوږ کېږدي او ویې مني چې په ځینو حالاتو کې دده د کمزورۍ اصلاح د نورو په مرسته کېږي او همدا راز د بل مسلمان دیني دنده ده چې کله په مسلمان کې څه کمزوري وګوري باید ور په ګوته یې کړي، تر څو مسلمانه ټولنه له ناروا وو اعمالو څخه پاکه او ژوند یې هوسا وي.

**د حدیث شریف ګټې**

**١ – مسلمان د مسلمان هنداره ده**

مسلمانان په خپلو منځوکې یوبل ته اړتیا لري، ځکه چې هغه عیبونه چې یو مسلمان یې لري او پرې نه پوهېږي، بل مسلمان ورور یې ورته اصلاح کوي، لکه څرنګه چې انسان خپل ځان هنداري ته په کتلوسره په خپله سموي، نو مسلمان خپل مسلمان ورورته هغه څه

غواړي چې پر خپل ځان يې لوريږي او خپله دنده ګڼي چې د بل مسلمان نيمګړتياوې ور په ګوته کړي، په دې حديث کې هر مسلمان ته لارښوونه کېږي چې د بل مسلمان نصيحتونو منلوته تيار وي، همداراز هرمسلمان بايد له بل مسلمان څخه غوښتنه وکړي چې دده نيمګړتيا او کمی ورپه ګوته کړي، ځکه دا زمونږ د نېکو خلکو تګ لاره ده، حضرت عمر فاروق به په منبر باندې خپلو ملګرو ته اعلان کاوه چې دده نيمګړتيا او کمزورۍ ور وښيي.

**٢ – مسلمان د مسلمان وروردی**

هرمسلمان بايد د خپل مسلمان ورور په هکله خير وغواړي او يو پر بل پوره باور ولري چې څه وړانديز کوي اساس يې ښېګڼه او اصلاح ده نور څه مادي ګټې او يا ده ته زيان رسول نه دي.

**٣ – د منکر له منځه وړل**

د هرمسلمان ديني دنده ده چې په حکمت او بصيرت سره د ناروا کارونو په له منځه وړلو کې پوره برخه ولري، ځکه د مسلمان بريالتيوب په همدې پورې تړلی دی، اوپه يوازې ځان اصلاح کولو باندې څوک نشي کاميابيدلی، ترڅو چې نور خلک يې د دين لوري ته دعوت او له بدو کارونو څخه منعه کړي نه وي، لکه چې الله تعالی په العصر سورت کې فرمايي: ﴿وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ﴾ [العصر:٣] **ژباړه:** او (له زيان څخه ژغورل شوي هغه کسان دي) چې يو بل ته په حق او صبر سره نصيحت کوي.

**٤ – مسلمان د هنداړې په څېر پاک دی**

کامل مسلمان خپل سيرت د هنداړې په څېر پاک ساتي، هر وګړی د هغه په هکله باور لري چې د ټولو خلکو خير غوښتونکی دی او هېڅکله د چا په تاوان نه خوښيږي، نو پدې اساس هر وګړی د ده نظر د سر په سترګو مني، ځکه هغه عملاً په خپل ژوند کې خلکو ته خپل اخلاص او خير غوښتنه ښودلې ده.

**٥ – مسلمان د خپل مسلمان ورور عزت غواړي**

د هنداړې سره د مسلمان تشبيه همدا معنا لري چې د مسلمان اصلاح به په داسې توګه کوي لکه هنداره چې د هغه رسوا کول به يې هدف نه وي چې په خلکو کې ذليل شي، بلکې په راز ساتلو سره به د هغه اصلاح راولي، څرنګه چې انسان خپله څېره په هنداره کې ګوري خپلو نيمګړتياوو ته متوجه کيږي، هنداره د ده څېره بل چاته نه رسوا کوي.

**ځينې زرينې وېناوې**

يوه ورځ عمر بن عبد العزيز رحمة الله عليه ته وويل شول چې په خپل رعيت کې مشر ته د پلار په سترګه وګوره اوکشر ته د زوی نظر وکړه او ځوان ته د خپل ورور په حيث وګوره، ټول رعيت به دې خپل شي.

يحيى بن معاذ رازي –رحمة الله عليه– وايي: يو مسلمان پر بل مسلمان حق لري که چيرې مرسته ورسره نشي کولای، بايد ضرر ورته ونه رسوي او که چيرې خوشحالي نشي ورکولای، غم خو ور ونه رسوي اوکه چيرې يې ستايلی نشي بدي خو يې هم ونه وايي.




۱- لاندې کلمې معنا کړئ:

مِرْآةٌ :

اذىً :

فليُمطهُ :

۲ – د حديث ګټې په خپل عبارت کې ووایاست.

۳ – څرنګه کيدای شي چې مسلمان د مسلمان لپاره هنداره اوسي؟ واضح يې کړئ.


**کورنۍ دنده**

د لوست مهم ټکي په پام کې نيولوسره (مسلمان د مسلمان لپاره هنداره ده) تر سرليک لاندې يوه مقاله وليکئ.

# د مشورې اهمیت

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِﷺ: { الْمُسْتَشَارُ مُؤْتَمَنٌ }.

[ رواه الترمذي.]

**د کلمو معنا**

الْمُسْتَشَارُ: هغه کس ته ویل کیږي چې له هغه څخه د مشورې غوښتنه کیږي.

مُؤْتَمَنٌ: هغه څوک چې امین ګرځول شوی وي.

**د حدیث شریف ژباړه**

له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: هغه کس چې د مشورې غوښتنه ورڅخه کیږي داسې دی لکه چې امانت ورسره ایښودل شوی وي.

**د حدیث شریف حکمت**

په اسلام کې شورا خورا مهم اصل بلل کیږي، له مسلمانانو څخه په کلکه غوښتنه شوې چې په خپل ژوند کې یې پلې کړي او په دې حدیث کې مسلمانانو ته لارښوونه شوې چې د مشورې ورکول یو امانت دی، نو لازمه ده چې هر مسلمان په دې اړه پوره متوجه اوسي او خپل مسلمان ورورته هسې مشوره ورکړي چې د هغه پکې ګټه او خیر وي، همداراز د هر مسلمان دیني دنده ده چې په خپل ژوند کې د شورا قانون پر خپل ځان عملي کړي، سالم نظر ته غاړه کیږدي، ځکه دا جوته ده چې له مشورې نه وروسته هر کار معقول اونتیجه یې مثبته وي.

**د حدیث شریف ګټې**

**۱- د مشورې ورکولو اهمیت**

مشوره ورکوونکی د یوه امین حیثیت لري چې د امانت په ساتنه کې پوره زیار باسي، ترڅو ورڅخه ضایع نشي، همداراز مسلمان چې کله خپل ورور ته مشوره ورکوي په پوره غور او فکر سره یې ورکوي، د دې لپاره چې په ګټه یې خوشحالیږي او په تاوان یې خپه کیږي، ځکه مسلمان خپل ورور ته هغه څه خوښوي چې د ځان لپاره یې خوښوي.

**٢ – د امانت ساتنه**

د امانت ساتنه د مسلمانۍ له ښکاره نښو څخه یوه نښه شمېرل کېږي، خیانت د منافقت او ټګۍ له نښو څخه یوه نښه ده چې مسلمان ورڅخه ډډه کوي، ځکه د امانت خیانتول د الله تعالی له حکم څخه سرغړونه بلل کېږي، الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا﴾ [النساء:١٢]

**ژباړه:** بې له شکه الله تعالی تاسو ته امر کوي چې امانتونه د هغو خاوندانو ته وسپارئ. له همدې امله مسلمان یو چاته مشوره ورکول خپل لوی مسؤلیت ګڼي او پوره غور پکې کوي.

**٣ – مشوره اخیستل د مسلمان صفت دی**

مسلمانان د دین او دنیا په کارونو کې په خپلو منځو کې تل مشوره کوي، الله تعالی په قرآن کریم کې مؤمنان داسې ستايلي دي: ﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ﴾ [الشورى : ٣٨]

ژباړه: د مسلمانانو کارونه په خپلو منځو کې په مشوره دي.

همداراز الله تعالی خپل پیغمبر ته لارښوونه کوي چې په چارو کې له خپلو ملګرو سره مشوره وکړي: ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾ [آل عمران : ١٥٩]

خپلو ملګرو(اصحابو) سره په کارونو کې مشوره وکړه.

د دې آیت حکم ټولو مسلمانانو ته متوجه دی او د هر مسلمان مکلفیت ګڼل کېږي.

له حضرت ابوهريرهؓ څخه روایت دی چې فرمايي: رسول اللهﷺ به له هر چا څخه زیات په مشوره عمل کاوه او له اصحابو څخه یې مشوره غوښتله.

**٤ – په مشورې سره کار سر ته رسول نېکمرغي ده**

مونږ مسلمانان په دې پوره باور لرو چې مشوره د ژوند په کارونو کې د بریالیتوب لوی لامل دی لکه چې پیغمبرﷺ فرمايلي دي: «مَا خَابَ مَنِ اسْتَخَارَ، وَلاَ نَدِمَ مَنِ اسْتَشَارَ، وَلاَ عَالَ مَنِ اقْتَصَدَ»[1]. **ژباړه:** څوک چې استخاره کوي هېڅکله نه ناکامېږي او څوک چې کارونه

[1] الراوي:أنس بن مالك المحدث: الطبراني المصدر: المعجم الأوسط الجزء أو الصفحة ٦/٣٦٥.

په مشوره کوي هېڅکله نه پښېمانه کېږي او څوک چې په ژوند کې میانه روي اختیار کړي نه خوارېږي، یعنې له اسراف او بې ځایه امساك (بخیلۍ) څخه ډډه کوي.

**مشوره باید له چا څخه واخیستل شي؟**

هغه څوك با يد د مشورې اخیستلو لپاره غوره کړای شي چې باوري، په نظر ورکولو کې صادق وي او په هغه کار کې چې مشوره ورڅخه غوښتل کېږي پوره معلومات ولري او مشوره غوښتونکی یې له دیانت څخه ډاډمن وي.




۱ - مشوره په چارو کې څه اهمیت لري؟

۲ - له چا څخه باید مشوره واخیستل شي؟

۳ - په حدیث کې مشوره ورکوونکی له چا سره تشبیه شوی دی؟



**کورنۍ دنده**

د لوست مهم ټکي په خپلو کتابچوکې ولیکئ.

# د بېوزلو سره مرسته

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ﷜ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ {السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ كَالْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ }. وَأَحْسِبُهُ قَالَ: { كَالْقَائِمِ لاَ يَفْتُرُ وَكَالصَّائِمِ لاَ يُفْطِرُ}. [متفق عليه]

**د راوي پېژندنه په تېر لوست کې شوې ده.**

**د کلمو معناوې**

**السَّاعِي:** پالونکی اومرسته کوونکی

**الْأَرْمَلَةِ:** کونډه

**كَالْقَائِمِ:** په شپه کې عبادت (تهجد) کوونکی

**لاَ يَفْتُرُ:** نه ستومانه کېږي

**لاَ يُفْطِرُ:** پرله پسې روژه نيسي

**د حديث شريف ژباړه**

له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د کونډې اومسکين پالونکي د الله تعالی په لار کې د مجاهد په څېر دی او راوي وايي چې ګومان کوم: پيغمبر ﷺ وويل: اجر يې د هغه نه ستومانه کېدونکي مسلمان په څېر دی چې تل شپه د الله تعالی په عبادت کې په ولاړه تېروي او د هغه تل روژه نيوونکي په څېر ثواب لري چې هېڅکله روژه نه ماتوي (د ورځې ټول عمر روژه نيسي).

**د حديث شريف حکمت**

د اسلام دين د نېکمرغۍ دين دی، د انسان د دنيا اوآخرت برياليتوب ورپورې تړلی دی او ټول انسانيت ته د سمې لارې ښوونه کوي، يعنې په سمه توګه د خپل رب پېژندنه، د هغه د مخلوق سره د مرستې او خواخوږۍ دين دی. څرنګه چې د متعال رب عبادت کول لازم دي، همدارنګه په انسانانو باندې زړه سوی کول هم ضروري دي، په پورتني حديث کې پيغمبر ﷺ، د کمزورو او اړو خلکو سره مرسته او پالنه د هغو سختو عباداتو سره برابره کړې چې مسلمان يې په ډېرې سختۍ سره سرته رسولای شي، دا د دې ښکارندوی دی،

يوازينى دين چې د انسانانو ترمنځ يې يو والى راوستى دى او توپيرونه او فاصلې يې له منځه وړي دي، هغه د اسلام مبارك دين دى.

**فعاليت:** زده كوونكي دې په ډله ييزه توگه له اړو خلكو سره د مرستې بيلگې په گوته كړي.

## د حديث شريف گټې

### ۱ – د اړو خلكو د پالنې ثواب

له حديث شريف څخه دا څرگندېږي چې كه څوك د كفايي جهاد كولوڅخه عاجز وي اوغواړي د مجاهد ثواب تر لاسه كړي، له كونډو او اړو خلكو سره دې مرسته وكړي، پرته له دې چې د جهاد په لاره كې ستونزې او كړاوونه وگالي، دا ټول په دې دلالت كوي چې كونډې او بې اسرې خلك الله تعالى ته نژدې خلك دي چې له هغوى سره د مرستې په پايله كې مرسته كوونكو ته لوړ مقام وركوي.

### ۲ – له مخلوق سره ښېگنه عبادت دى

په پورتني حديث شريف كې له كونډو او بېوزلو خلكوسره مرسته په شپه كې پرله پسې ټول عمر عبادت كولو او تل تر تله روژه نيولو سره برابره ښوولې شوې ده.

له عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چې پيغمبرﷺ فرمايلي دي: له غوره عملونو څخه يو دادى چې مؤمن خوشحاله وساتي، په جامو يې پټ كړي، لوږه يې ختمه كړي او اړتيا يې پوره كړي.[1]

### ۳ – له اړو او كمزورو خلكوسره مرسته كول كاميابي ده:

هر مسلمان چې د مسكينانو او اړو خلكو سره مرسته كوي هغه به په خپل ژوند كې تل خوشحاله او نېكمرغه وي، ځكه له ده سره د الله مرسته مل وي، لكه چې رسول اللهﷺ فرمايي: «هَلْ تُنْصرُونَ وتُرْزَقُونَ إلاَّ بِضُعَفَائِكُمْ»[2] **ژباړه:** ستاسو رزق او كاميابي د كمزورو (دعا) پورې تړلې ده.

---

۱ – طبراني

۲ – رواه البخاري

نو کله چې انسان د کونډو، یتیمانو، او مسکینانو په پالنه کې بوخت وي الله تعالی یې په ژوند اوکار کې برکت اچوي.




۱ -لاندې کلمې معنا کړئ:

**السَّاعِي:**

**الأَرْمَلَةِ:**

**لاَ يَفْتُرُ:**

**لاَ يُفْطِرُ:**

۲ - د حدیث شریف معنا وواياست.



**کورنۍ دنده**

له بېوزلو سره د مرستې تر سرلیک لاندې یوه مقاله ولیکئ.

# د لوڼو پالنه او روزنه

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: «مَنْ عَالَ جَارِيَتَيْنِ حَتَّى تَبْلُغَا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَا وَهُوَ» وَضَمَّ أَصَابِعَهُ. [رواه مسلم]

**د راوي پېژندنه**

انس د مالك زوی د نضر لمسی، كنيه يې ابو حمزه، د انصارو د خزرج له قبيلې څخه و، لس كاله يې د رسول الله ﷺ په خدمت كې تېر كړي دي. رسول الله ﷺ ورته په عمر او مال كې د بركت دعا كړې وه او په وړوكوالي كې يې د بدر په غزا كې ګډون وكړ. په لمانځه كې يې له رسول الله ﷺ سره ډېر ورته والى درلود. يو له هغو صحابه وو څخه دى چې زيات شمېر احاديث يې روايت كړي دي. د پيغمبر ﷺ له مړينې څخه وروسته د جهاد او فتوحاتو په لړ كې عراق ته ولاړ او په بصره كې مېشت شو. هغه وروستى صحابي و چې د سلوكلونو په عمر په بصره كې وفات شو.

**د كلمو معناوې**

١ – عَالَ: پالنه وكړه

٢ – جَارِيَتَيْنِ: دوه كوچنۍ لورګانې

٣ – تَبْلُغَا: دواړه بلوغ ته ورسيږي

٤ – ضَمَّ: نژدې او يو ځاى كړې

٥- أَصَابِعَهُ: خپلې ګوتې

**د حديث شريف ژباړه**

له انس رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وويل: څوك چې د دوو لورګانو پالنه او روزنه تر بلوغه پورې وكړي، د قيامت په ورځ به زه او هغه (پالونكى) سره يوځاى يو او خپلې (دوه) مباركې ګوتې يې سره نژدې كړې.

يعنې د دوو لوڼو پالونکی او پیغمبرﷺ به په جنت کې سره نژدې اوسي او دا نـژدې کيـدل يې د دوو ګوتو ترمنځ له فاصلې سره تشبيه کړل.

### د حديث شريف حکمت

دا يو څرګند حقيقت دی چې اسلام نه يوازې د انسان د ژوند ساتنه کوي، بلکې د ټولـو مخلوقاتو حقوق پکې خوندي دي، پـه دې حـديث کـې د کوچنيـانو د حقوقـو پـه هکلـه مسلمانانو ته لارښوونه شوې ده چې په ځانګړې توګه د نجونو پالنـه او روزنـه ډيـره د پـام وړ ده، د دوی تربيې اوساتنې ته يې د هلکانو په پرتله غوره والی ورکـړی دی، آن تـردې چې پيغمبرﷺ د دوی پالونکي له ځان سره نژدې بللي دي او د نجونو شـتون يـې پـه کـور کې نېکمرغي ښوولې ده.

او دا ځکه چې ښځې له پيل څخه تر واده پورې له خطـر سـره مـخ وي، اسـلام د دوی د مصئوونيت په موخه پلار او مور ته دنـده سـپارلې چې تـر واده پـورې ورتـه پـوره پاملرنـه وکړي، ترڅو په ټولنه کې د بدو خلکو ښکار او په ټولنه کې د تجارت د سامان پـه توګـه استعمال نشي.

### د حديث شريف ګټې

### ۱ - د لورګانو د پالنې اجر

د لوڼو او خويندو پالنه، روزنه او د هغـوی اړتيـاوې پـوره کـول د دې لامـل ګرځـي چـې پالونکی يې د آخرت له عـذاب څخـه خـلاص او هغـه غوښـتنه تـر لاسـه کـوي چـې هـر مسلمان ورته ليوال دی چې هغه جنت ته تلل دي، دا د دوی د روزنـې پـه اهميـت بانـدې دلالت کوي.

دا اجر يوازې پلار ته نه دی ځانګړی شوی، بلکې مور هم له دې اجر څخـه برخمنـه ده، دعايشې رضی الله عنها روايت چې وروسته راځي پر دې دلالت کوي.

### ۲ – پر پلار باندې د لورګانو حقوق

لـور پـه پـلار او خـور پـه ورور بانـدې حق لـري چـې د هغـو پالنـه او روزنـه وکـړي، دا مسؤوليت تر ځوانۍ محدود نه دی، بلکې وروسته له بلوغه هم دوام لري چې حق يـې پـه نکاح ورکولو سره ساقطيږي، له هغـه څخـه يـې وروسـته سـاتنه او پالنـه پـه خاونـد بانـدې لازميږي.

**۳ – د لورګانو سره ښېګڼه**

که څه هم په حدیث کې د لورګانو یادونه شوې ده، خو علماء د نورو روایاتو په رڼا کې وايي دغه ثواب د لورګانو په هکله ځانګړی نه دی، بلکې هغه څوک چې د خوینـدو اوترورګانو سره ښیګڼه او پالنه یې کوي هم له دغه ثواب څخه برخمن دي.

**۴ – د دوو لورګانو شمېر ضروري نه دی**

په دې حدیث کې د دوو لورګـانو یادونـه شـوې ده، خـو د یـوې لورپالنـه او روزنـه هـم همداراز ثواب لري، له حضرت عایشې رضي الله عنها څخـه روایـت دی وایـي: یـوه ورځ زما کور ته یوه مسکینه ښځه راغله، دوه لوڼې ورسره وې، له ما څخه یې د مرستې غوښتنه وکړه، ماورته درې دانې خرما ورکړې، یوه یوه یې هرې لورته ورکړه، دریمه یې غوښـتل چې په خپله یې وخوري، خو هغه یې هم په منځ کـې دوه ځایـه کـړه او پـه لورګـانو یـې وویشله، ما دغه کیسه پیغمبرﷺ تـه وکـړه هغـه وفرمایـل: «مَنِ ابْتُلِيَ مِنْ هذِهِ البَنَاتِ بِشَيءٍ فَأحْسَنَ إلَيْهِنَّ، كُنَّ لَهُ سِتراً مِنَ النَّارِ».[1]

**ژباړه:** څوک که د داسې لوڼو په هکله څه قدرې په امتحان کې واقع شو او له هغوی سره یې ښیګڼه وکړه، وي به دغه لوڼې د پالونکي لپاره د دوزخ له اور څخه د نجات پرده.

**۵ – د ښځو ژوند ته د اسلام پاملرنه**

د جاهلیت په زمانه کې لور او خور په کورنۍ کې عیب بلل کېده، کله به چې په کورکې نجلۍ وزېږېده خلکو به د خوشحالۍ پر ځای ماتم کاوه، قرآن کریم دغـه واقعیـت داسـې بیان کړی دی: ﴿وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُمْ بِالْأُنْثَى ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ﴾ [النحل : ۵۸ ]

**ژباړه:** کله به چې له دوی څخه یوه تن ته د نجلۍ د زېږېـدو خبـر ورکـړای شـو، د مـخ رنګ به یې تور وګرځیده او هغه به له غوسې ډک شو.

د اسلام په برکت سره خلک د دغه نـاوړه عمـل څخـه وژغـورل شـول، ورتـه لار ښـوونه وشوه چې ښځه په کور کې سعادت دی، پالنه یې د دنیا او آخرت نېکمرغي ده.

---

[1] – مُتَّفَقٌ عَلَیهِ

**٦ - په دین باندې سم پوهول**

پیغمبرﷺ د دې لپاره چې خلک سم پوه شي، خپلې ګوتې یې نژدې کړې، تر څو مسلمانان د لوڼو پالنې او روزنې ته پوره توجه وکړي او په دې وسیله په جنت کې له پیغمبرﷺ سره د یو ځای کیدو لوړ مقام وګټي.




١ - لاندې کلمې معنا کړئ:

- **عَالَ**:
- **جَارِيَتَيْنِ**:
- **تَبْلُغَا**:
- **ضَمَّ**:
- **أَصَابِعَهُ**:

٢ - د لورګانو پالنه څه اهمیت لري؟

٣- آیا د خویندو روزنه هم د لورګانو په څېر ثواب لري؟

٤- د جاهلیت په دوره کې د نجونو ژوند څرنګه و؟

**کورنۍ دنده**

د لوست د مهمو مطالبو په پام کې نیولو سره د ښځود حقوقو په هکله یوه مقاله ولیکئ.

# د حلالې روزۍ ګټل

عَنْ الْمِقْدَامِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:" مَا أَكَلَ أَحَدٌ طَعَامًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْكُلَ مِنْ عَمَلِ يَدِهِ وَإِنَّ نَبِيَّ اللَّهِ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَام كَانَ يَأْكُلُ مِنْ عَمَلِ يَدِهِ". (رواه البخاري)

**د رواي پېژندنه**

مقدام د معديكرب زوی، كنيه يې ابو كريمه الكندی د كندې قبيلې سره تړاو لري چې شمېر يې كم، د رسول اللهﷺ نژدې ملګری و، له يمن څخه په داسې حال كې راغی چې وړوكی و، د رسول اللهﷺ سره يې په ټولو غزاګانوكې ګډون كړی و، وروسته بيا په شام كې مېشت شو او د هجرت په (۸۷) كال د (۹۱) كالو په عمر په همدې خاوره كې وفات شو.

**د كلمو معناوې**

۱ – **قَطُّ:** هيڅكله او هېڅ وخت

۲ – **يَأْكُلَ:** خوري يې

۳ – **مِنْ عَمَلِ يَدِهِ:** د خپل لاس له كارڅخه

**د حديث شريف ژباړه**

له مقدام رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي: هغه خوراك چې د خپل لاس د كار (ګټې) څخه وي، له هغه څخه بل غوره خوراك چا خوړلی نه دی او د الله جل جلاله د پيغمبر داوود عليه السلام روزي د خپل لاس له ګټې څخه و.

**د حديث شريف حكمت**

په پورتني حديث كې پيغمبرﷺ هغه بنده غوره ښودلی چې خپل ځان ته روزي په خپل زيار، په حلاله توګه ګټې او دا د غوره انسانانو كړنلاره ده، داوود عليه السلام همداسې ژوند درلود او الله تعالی د انسان په خپل لاس رزق ګټل ستايلي او مسلمانان يې كار كولو ته هڅولي دي، بېكاري ډېرې ناخوالې زېږوي او د وزګار انسان ژوند تل د ستونزو سره مخ

وي، په دې اساس د پیغمبرﷺ پورتنۍ وینا په مسلمانانو کې حرکت پیدا کوي، څکه کار او زیار د نېکو او پیاوړو خلکو نښه ده، نو په مسلمانه ټولنه کې هر وګړی د ځان لپاره د بوختیا په لټه کې وي، ترڅو په ځان کې د بهترینو خلکو صفت پیدا کړي او پر چا پېټی نه اوسي.

**د حدیث شریف ګټې**

**١ – په خپل لاس ګټلې روزي**

په حدیث شریف کې د خپلې خوارۍ او زیار په نتیجه کې لاس ته راوړې روزي له ټولو غوره روزي بلل شوې ده، څکه دا د غوره خلکو کړنه او د الله تعالی د نېکو بندګانو سنت دی.

**٢ – روزي ګټل ستایل شوی عمل دی**

د روزۍ لاس ته راوړلو په موخه کسب او کار کول عیب نه دی، بلکې د پیاوړو خلکو کړنه ده، لکه چې پیغمبرﷺ په بل حدیث کې فرمايي: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ فَيَحْتَطِبَ عَلَى ظَهْرِهِ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْتِيَ رَجُلًا فَيَسْأَلَهُ أَعْطَاهُ أَوْ منعه»[1] **ژباړه:** قسم په هغه ذات چې زما روح دهغه په لاس کې دی، یوله تاسو څخه چې خپله رسۍ راواخلي او په خپله شا لرګي بار راوړي، له دې لارې څخه خپل ځان ته حلاله رزق وګټي، دغه کس له هغه کس څخه غوره دی چې سؤال کوي او څوك ورته څه ورکړي یا نه.

**٣ – د داوودعليه السلام یادونه**

په دې حدیث کې د داوودعليه السلام د یادونې ځانګړتیا داده چې هغه سره له دې چې د وخت واکمن و اوکسب ته یې اړتیا نه درلوده، خو بیا هم هغه دا غوره ګڼله چې په خپل لاس ګټلې رزق وخوري، کار او کسب یې د ځان لپاره عزت ګاڼه.

**٤ – د کسب زده کړه**

د کسب زده کړه ښه صفت دی، د الله تعالی غوره بندګانو دکسب له لارې خپل ځان ته رزق پیدا کاوه، په مستدرك کې له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې: د الله جل جلاله پیغمبر داوودعليه السلام زغرې جوړولې او آدمعليه السلام کښت کاوه، او زکریاعليه السلام ترکاڼ و.

---

١ – رواه بخاري

**٥ – کار کول د توکل منا في نه دی**

بې له شکه چې مسلمان په خپل رب باندې په ژوند کې توکل لري، خو د توکل معنا دا نه ده چې له اسبابو تیارولو پرته له الله تعالی څخه د اړتیا پوره کولو په اړه غوښتنه وشي، بلکې له داسې عمل څخه شریعت منعه کړې ده، ځکه انبیاء علیهم السلام د توکل په معنا له هر چا څخه ښه پوهېدل، هغوی د توکل معنا د اسبابو تیارول او وروسته پر هغو باندې نتیجه مرتب کیدل الله تعالی ته پرېښودل ښودلي دي.

**٦ – د صنعت فضیلت**

په قرآن کریم کې صنعت ستایل شوی دی او الله تعالی خپل پیغمبرﷺ ته په دې اړه داسې فرمایلي دي: ﴿وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِنْ بَأْسِكُمْ فَهَلْ أَنْتُمْ شَاكِرُونَ﴾ [الانبیاء:٨٠]

**ژباړه:** (الله تعالی فرمایي): او مونږ داوود عليه السلام ته، ستاسې د ګټې لپاره د زغرې د جوړولو صنعت ورښود لی و، ترڅو چې تاسې یو د بل له ګوزار نه وژغوري، نو آیا تاسې شکر ویستوونکي یاست؟.

په پورتني آیت کې الله تعالی کسب یادول د انسان کمال بللی دی.




لاندې کلمې معنا کړئ:

١ – قَطٌّ:

ب – يَأْكُلَ:

ج – مِنْ عَمَلِ يَدِهِ:

٢ – داوود عليه السلام څه ځانګړتیا درلوده؟

٣ – په خپل لاس ګټلی رزق څه اهمیت لري؟

٤ – د پورتني حدیث څو ګټې وواياست.




د لوست حدیث له ژباړې سره په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# په دين کې آسانتيا

**عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا وَأَبَا مُوسَى إِلَى الْيَمَنِ قَالَ يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا وَتَطَاوَعَا وَلَا تَخْتَلِفَا.** [رواه البخاري]

## د راوي پېژندنه

سعيد چې د معتمدو تابعينو څخه شميرل کيږي، د پلار نوم يې عامر چې په کنيې(ابوبردة) سره يې شهرت درلود، په کوفه کې قاضي پاتې شوی دی، د نيکه نوم يې ابوموسی عبدالله بن قيس الاشعري ﷺ چې مشهور صحابي دی، نوموړی (سعيد) په (۱۶۸)هجري کې له دنيا څخه رحلت وکړ.

## د کلمو معناوې

**يَسِّرَا:** آساني وکړئ.

**وَلَا تُعَسِّرَا:** سختي مه کوئ.

**وَبَشِّرَا:** زيری ورکړئ.

**وَتَطَاوَعَا:** په خپلو منځوکې دوستي ولرئ او يو د بل منونکي اوسئ.

## د حديث شريف ژباړه

سعيد د خپل پلار په ذريعه له نيکه څخه روايت کوي چې: رسول الله ﷺ معاذ او ابو موسی رضي الله عنهما يمن ته استازي وليږل او ورته يې وويل: له خلکوسره آسانتيا غوره کړئ، سختي مه کوئ، خلکو ته د خوشحالۍ زيری ورکړئ، نفرت مه خوروئ، يو د بل منونکي اوسئ او له اختلاف څخه ځان وژغورئ.

### د حديث شريف حکمت

د اسلام دين د انسان له سليم فطرت سره سم راغلی دی، هيڅ داسې کوم حکم نلري چې په کولوېې انسان ونه توانيږي، يا د فطرت د غوښتنې پر خلاف وي، دا ځکه چې زموږ د دين اساس پر آسانتياوو ولاړ دی، په هر وخت او هر ځای کې چې مسلمان له ستونزو سره مخ کيږي او نشي کولای چې هغه پر ځای کړي، اسلام ورځخه د هغه عمل سرته رسول ساقط کړي او يا يې په کې آساني راوستې ده، دا يوازې د اسلام ځانگړتيا او وړتيا ده چې د دې ښکارندوی دی چې په هر ځای او هر وخت کې د نړۍ د خلکو لپاره سمه لار ښوونه وکړي.

### د حديث شريف گټې

#### ۱ – په دين کې آسانتيا

په اسلام کې سختي نشته، ځکه الله تعالی خپل بندگان په داسې کوم عمل کولو باندې نه دي مکلف کړي چې د هغوی له توان څخه اوچت وي او دا يې په دين کې لوی اصل اېښی، الله تعالی فرمايي: ﴿لاَ يُكَلِّفُ اللهُ نَفْساً إلاَ وُسْعَهَا﴾ [ البقرة : ۲۸٦]

**ژباړه:** الله تعالی هېڅ يو نفس نه دی مکلف کړی، خو د هغه د توان په اندازه.

پيغمبرﷺ به په دووکارونو کې آسان غوره کاوه که چيرې به يې گناه نه درلوده.

همداراز رسول الله فرمايي: «إنَّ الدِّين يُسْرٌ، ولنْ يُشادَّ الدِّينَ أحدٌ إلا غَلَبَه.. » [(۱)]

**ژباړه:** بې له شکه د اسلام دين د آسانۍ دين دی او څوک چې په خپل ځان باندې دين سخت کړي ارومرو مغلوبيږي او نشي کولای چې بيا ورته ادامه ورکړي.

#### ۲ – په دعوت کې له نرمۍ څخه کار اخيستل

په حديث شريف کې مسلمانانو ته لارښوونه کيږي چې له خلکو سره په نرمۍ چلند وکړئ چې دا د ټولو انبياوو تگ لاره ده، الله تعالی موسی او هارون عليهما السلام ته لارښوونه کوي: ﴿اذْهَبَا إِلَى فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَى فَقُولا لَهُ قَوْلاً لَيِّناً لَعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَى ﴾ [الطه : ٤٣ – ٤٤ ]

---

۱ – رواه البخاري

**ژباړه:** دواړه فرعون ته ورشئ، يقيناً هغه طغيان غوره کړئ او ورته په نرمۍ سره وينا وکړئ، ښايي چې نصحيت قبول کړي او يا له عذاب څخه ووېرېږي.

د ژوند په هر اړخ کې بايد دې دستور ته پاملرنه وشي، هغه که دعوت وي، زده کړه وي، اصلاح راوستل وي او که له خلکو سره خبرې اترې وي.

**۳ – له کرکې خپرولو څخه ډډه کول**

د اسلام دين د رحمت دين دی، د کرکې او تنفر دين نه دی، لـه همـدې املـه پيغمبـر ﷺ خپلو استازو ته لارښونه کړې چې خلک د دين لوري تـه وهڅـوي او لـه ديـن څخـه يـې متنفر نه کړي، په يـو بـل حـديث کـې راغـې پيغمبـرﷺ فرمـايي: «إنَّ الله لم يبعثني معنّتًا ولا متعنِّتًا، ولكن بعثني معلِّمًا ميسِّرًا». [1]

**ژباړه:** رسول اللهﷺ فرمايي: الله تعالی زه په خلکو او په خپل ځان سختي راوړونکی نه يم رالېږلی، بلکې ښوونکی او د آسانی راوستونکی يې رالېږلی يم.

**٤ - زيری ورکول**

د مسلمان دعوتگر لپاره دا ښايي چې خلکوته د اسلام دنيوي او اخـروي ښـېگڼې پـه مـخ کې کيږدي، د اعمالو فضيلتونه ورته بيان کړي، څرنگه چې په رښتيا هم د اسـلام مبـارک دين د انسان د دواړو جهانو د نېکمرغۍ لپاره راغلی، د هغه گټې خلکو ته وښيي او کومې بدبختۍ چې په نورو لاروکې دي، له هغو سره د اسلام د لارښـوونو پرتلـه وکـړي، ترڅـو خلک په ذوق او رغبت هغه پلي کړي.

**٥ – له اختلاف څخه ډډه کول**

په پورتني حديث کې له اخـتلاف څخـه د ډډې کولـو حکـم شـوی دی، ځکـه اخـتلاف دښمني، بغض او کينه رامنځته کوي د ټولنې اړيکې تخريبوي اوناخوالې رامنځ تـه کـوي، الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ﴾ [الانفال : ٤٦]

**ژباړه:** او اختلاف مه کوئ چې بيا کمزوري کيږئ او قوت موله منځه ځي.

---

۱ - صحيح مسلم

**يادونه**

په پورتني حديث شريف کې له اختلاف څخه د منعې معنا دا ده چې که چيرې په يوه مسئله کې نظريات مختلف وي، بايد د مسلمانانو تر منځ د دښمنۍ او بې اتفاقۍ لامل ونه ګرځي، د عمل په ميدان کې ټول سره په اتفاق ژوند تېر کړي، يو د بل د نظر احترام وکړي او په پای کې په يوه نظر راټول شي.




۱ - لاندې کلمې معنا کړئ:

يَسِّرَا:

وَلَا تُعَسِّرَا:

وَبَشِّرَا:

وَتَطَاوَعَا:

۲ - په دين کې آسانې څه معنا لري؟ واضح يې کړئ.

۳- د اختلاف زيانونه ووایاست.

٤ - له نفرت څخه څرنګه ډډه کېدای شي؟



**کورنۍ دنده**

د لوست څخه په استفادې د يووالي په هکله يوه مقاله وليکئ.

# لعنت (ښېرا) ویل

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ عَلَى الْمُشْرِكِينَ. قَالَ: { إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ لَعَّانًا، وَإِنَّمَا بُعِثْتُ رَحْمَةً }. [رواه مسلم]

**د ځینو کلمو معناوې**

١ – **لَعَّانًا:** ډېر لعنت ویونکی او ښیرا کوونکی

٢ – **بُعِثْتُ:** رالېږل شوی یم.

**د حدیث شریف ژباړه**

له ابو هریره څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ ته وویل شول: اې د الله رسوله!، مشرکینو ته ښېرې وکړه: د الله رسول ځواب ورکړ: زه لعنت ویونکی(ښېرا کوونکی) نه یم رالېږل شوی، بلکې زه رحمت رالېږل شوی یم.

**د حدیث شریف حکمت**

زمونږ د پیغمبر راوړی پیغام (اسلام) د رحمت پیغام دی چې په عامه توګه د ټولو مخلوقاتو د ترحم اوشفقت ذریعه وګرځید، ځکه اسلام د ټولو مخلوقاتو د ساتنې ضامن، د هر چا حق پکې ټاکل شوی او له تېرې څخه یې خلک منعه کړي دي، د انسانانو د دنیا او آخرت د بریالیتوب یوازینۍ لاره ده او یوازینی دین دی چې د نړۍ خلک پرې له ناخوالو څخه ژغورل کېږي مومي.

**د حدیث شریف ګټې**

**١ – لعنت ویل لویه ګناه ده**

لعنت ویل ګناه ده، له ویلو څخه یې اسلام منعه کړېده، د پیغمبر ﷺ په وړاندې یو صحابي په باد(هوا) باندې لعنت وویل. پیغمبر ﷺ ورته وفرمایل: په هوا لعنت مه وایه، ځکه د الله تعالی لخوا ورته امر شوی دی، خوک چې پر چا بې ځایه لعنت وایي، د لعنت ویل یې بېرته ویونکي ته راګرځي.[1]

په یوه بل روایت کې پیغمبرﷺفرمایي: «لا تَدْعوا على أنفسكم، ولا تَدعوا على أولادكم، ولا تَدْعوا على خَدَمِكم، ولا تَدُعوا على أموالكم، لا تُوافِقُوا من الله عَزَّ وجلَ ساعةَ نَيْلٍ، فيها عطاءٌ، فَيَسْتَجيبَ لكم»[2]

---

١ – سنن ابو داوود.

٢ – سنن ابو داوود

**ژباړه:** خپلو ځانونو ته ښيرې مه کوئ، همدارنګه خپلو بچو، مزدورانو اومالونو ته ښېرې مه کوئ، داسې نشي چې تاسې ښېرې په داسې وخت کې وکړئ چې الله تعالی سوالونه قبلوي ستاسې ښېرې به قبولې کړي.

په بل حدیث شریف کې راځي چې پر مسلمان لعنت ویل د مسلمان د قتل په څېر دي.[1]

### ۲ - ښېرې کول لعنت بلل کيږي

له پورتني حدیث څخه څرګندیږي چې سپکې، سپورې، او ښېرې هم لعنت بلل کېږي، مسلمان باید خپله ژبه له بدو وېناوو څخه وژغوري، ځکه مسلمان د خپلو وېناوو په وړاندې مسؤول ګڼل کېږي، نو له همدې کبله اسلام مسلمان د بدو وېناوو، سپکو، اوکنځلو څخه منعه کوي، رسول الله ﷺ فرمايي: « لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ وَلاَ اللَّعَّانِ وَلاَ الْفَاحِشِ وَلاَ الْبَذِيءِ ». [2]

**ژباړه:** مسلمان چا پورې تور نه تړي او نه لعنت ویونکی دی او نه بې حیا چې سپکې او سپورې خبرې کوي.

### ۳ – د رسول الله راتګ رحمت دی

بې له شکه د پیغمبر ﷺ رسالت د هغه باران په څېر دی چې مړې ځمکې ژوندۍ کوي او ژوند ته ښایست وربښي، نو همدارنګه د پیغمبر ﷺ په راتګ سره مړه زړونه د اسلام په نور ژوندي اوروښانه شول، ړندې سترګې بینا شوې او کڼو غوږونو اوریدل پيل کړل، بلکې الله تعالی د پیغمبر ﷺ په رالیږلو سره دنیا رڼا کړه، د مینې اومحبت وړانګې يې خورې کړې، ظلم او ناپوهي يې په علم او عدل بدل کړ، اود دې صفت په درلودو سره د نړۍ خلک پرې راټول شول، لکه څرنګه چې الله تعالی فرمايي: ﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِك..﴾ [آل عمران : ۱۵۹]

**ژباړه:** نو د الله تعالی د رحمت په سبب دوی ته نرم شولې اوکه چیرې سخت زړی او تونده خویه وای، نو خلک به له تا څخه خواره شوي وای.

### په ځینوځایونو کې د ګناه کولو له کبله لعنت ویل شوی دی

په شریعت کې د ځینو ناوړو اعمالو سرته رسوونکي ملعون (د الله تعالی له رحمت څخه لیرې) بلل شوي چې بیلګې یې په لاندې توګه بیانیږي:

۱ – هغه ښځه چې په مړي ویر کوي اوچیغې پرې وهي اود شریعت خلاف ناروا وینا کوي، په حدیث کې راځي: «لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ النَّائِحَةَ وَالْمُسْتَمِعَةَ لها...» [3]

---

۱- صحیح مسلم

۲ - مسند احمد

۳ - سنن ابو داوود.

**ژباړه:** رسول اللهﷺ هغه ښځه چې په مړي باندې چیغې وهي او هغه ښځه چې ورته غوږ باسي لعنت ویلی دی.

۲ – هغه ښځې چې خالونه لګوي، هغه ښځې چې د خال لګولو غوښتنه کوي، هغه ښځې چې وروځې وکاږي او هغه ښځې چې د ویښتلو غوښتنه یې کوي، په حدیث کې راځي رسول اللهﷺ فرمایي: «لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَ الْمُوتَشِمَاتِ والنامصات وَالْمُتَنَمِّصَاتِ» [۱]

په خال لګوونکو ښځو او هغه ښځې چې لګول یې غواړي او هغه ښځې چې وروځې وکاږي او هغه ښځې چې د ویښتلو یې غوښتنه کوي، د الله تعالی له لوري پر دوی لعنت دی.

**۳ – د سود خوړل**

په حدیث کې راځي چې سود خوړونکی او سودورکوونکي او د سود سند لیکونکی او شاهدان یې لعنتي او د الله له رحمت څخه لیرې دي.[۲]




لومړۍ پوښتنه:

۱ - د حدیث راوي څوک دی ؟ معرفي یې کړئ.

۲ - لعنت څه ته ویل کیږي؟

۳ – پر کومو کسانو باندې د خپلو ناروا کړنو له کبله لعنت ویل شوی دی؟

دویمه پوښتنه:

لاندې کلمې معنا کړئ:

۱ – لَعَّانًا:

۲ – بُعِثْتُ:

۳ – لَعَّانًا:



**کورنۍ دنده**

د لوستل شوي حدیث په پام کې نیولوسره (زموږ پیغمبر رحمت دی) تر سرلیک لاندې یوه مقاله ولیکئ.

---

۱ - صحیح مسلم

۲ - صحیح مسلم

شلم لوست

# په چارو کې منځنی حالت غوره کول

عن جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِﷺ عَنِ النَّبِيِّﷺ أَنَّهُ قَالَ: « إِنَّ هَذَا الدِّينَ مَتِينٌ فَأَوْغِلْ فِيهِ بِرِفْقٍ، وَلاَ تُبَغِّضْ إِلَى نَفْسِكَ عِبَادَةَ اللَّهِ، فَإِنَّ الْمُنْبَتَّ لاَ أَرْضًا قَطَعَ، وَلاَ ظَهْرًا أَبْقَى ». [رواه البيهقي]

**د راوي پېژندنه**

حضرت جابر جليل القدر صحابي دی، د پلار نوم يې عبد الله، نيکه يې عمرو بن حرام، د عمر د کموالي له کبله يې د بدر او اُحد په غزاګانو کې ګډون نه درلود، د اُحُد له غزا څخه وروسته يې خپل ژوند د رسول اللهﷺ خدمت ته وقف کړ، په کور او سفر کې به د پيغمبرﷺ ملګرى و، له دې کبله يې زيات شمېر احاديث له پيغمبرﷺ څخه روايت کړي دي، په خپل وروستني عمر کې شام ته ولاړ او د څه مودې لپاره هلته مېشت شو او د هجرت په ۷٤ کال د ۹٤ کلونو په عمريې له فاني دنيا څخه رحلت وکړ او په (جنت البقيع) کې خاوروته وسپارل شو.

**د کلمو معناوې**

مَتِينٌ: ډير سخت او کلک

فَأَوْغِلْ فِيهِ: ورننوځئ، تګ لاره غوره کړئ

بِرِفْقٍ: په آسانۍ سره

الْمُنْبَتَّ: هغه څوک چې خپله سورلۍ د تېز ځغلولو له کبله له کاره وباسي.

وَلاَ تُبَغِّضْ: ځان لپاره يې بد مه ګرځوه

لاَ أَرْضًا قَطَعَ: نه يې سفر پوره کړ

وَلاَ ظَهْرًا أَبْقَى: او نه يې سورلۍ روغه پرېښوده

**د حديث شريف ژباړه**

حضرت جابر بن عبد الله ﷺ د رسول اللهﷺ څخه روايت کوي چې فرمايلي يې دي: بې له شکه دغه دين ډېر قوي دين دی، په آسانۍ سره پکې ورداخل شه، خپل ځان ته د الله تعالى په عبادت کولو کې کرکه مه راپيدا کوه(په ځان باندې د وس نه پورته عبادت کول مه لازموه)، ځکه تېز ځغلوونکي مسافر نه خپل سفر پوره کړی دی او نه يې سپرلۍ روغه پريښي ده.

### د حدیث حکمت

په پورتني حدیث کې د اسلام د مهم اصل یادونه شوې ده، هغه د دین او دنیا په چارو کې منځنی حالت غوره کول دي، دې اصل ته پام کول د مسلمان لپاره خورا مهم دي، ځکه چې د دې اصل په رعایت سره د مسلمان ژوند له افراط او تفریط څخه لېرې کیږي، د تل لپاره یې هر اقدام په دلیل او معقولیت باندې ولاړ وي، خپلې دیني چارې داسې عیاروي چې په هغه لاره تلل د تل لپاره ورته ممکن وي.

او دا راز متوسط حالت غوره کول د کامیابۍ راز دی او کله چې مسلمان په خپلو دیني مکلفیتونو کې متوسط حالت غوره کړي، هېڅکله پکې پاتې نه راځي، خوکه چېرې په عباداتو کې یې افراط وکړ، یو وخت به ارومرو داسې راځي چې دی به ستړی کیږي او عبادت به ورڅخه پاتې کیږي.

### د حدیث شریف ګټې

### ۱ – د اسلام دین قوت لري

د اسلام دین غښتلي احکام لري چې مسلمان یې د خپل وس په تناسب سره په سرته رسولو مکلف دی او په ځینو حالاتو کې د شرعي عذر له کبله اجازه ورکړل شوې ده چې یوازې د فرض په ادا کولو باندې اکتفا وکړي، لکه په سفر کې فرضي لمونځ کول، ترڅو پر مسلمان عبادت سخت تمام نه شي، نو د دین ټول نوافل لکه تل روژه نیول، له حد نه زیات تل نفلي لمونځونه کول، تل ترتله په تلاوت او ذکر کې مشغولیدل او داسې نور، دا ټول سره له دې چې دیني اعمال دي، خو هغو ته په یوځل غیږ ورکول انسان ستړی کوي او بیا یې له نور پرمختګ څخه غورځوي.

### ۲ – په دین کې میانه روي او تدریج

امام غزالي وایي: هرهغه څوک چې د دین په مرتبو کې له دمې اخیستلو پرته منډې وهي، حتماً په ده باندې د دین احکام سخت پریوځي، باید مسلمان د فرایضو نه وروسته په تدریج سره په خپل نفلي عبادت کې وړاندې لاړ شي، ترڅو نفلي عبادت پرې درووند تمام نشي.

### ۳ - هغه عبادت غوره دی چې همیشه وي

د اسلام دین مسلمانان دې ته هڅولي دي چې تل پاتې عبادت باندې ځان عادت کړي او هغه عبادت چې د څه وخت لپاره یې په زیاته اندازه وکړي او بیا یې پرېږدي، نه دی ستایل شوی.

د مسلمان لږ نېک عمل چې تل يې کوي، له هغه نېک عمل څخه غوره دی چې د څو ورځو لپاره وي او بيا يې پرېږدي، په دې اړه رسول اللهﷺ داسې فرمايلي دي: د خپل وس په اندازه نېک عملونه کوئ او غوره هغه عمل دی چې تل وي، که څه هم هغه لږ وِي.[1]

### ٤ – اسلام د ميانه روۍ دين دی

د اسلام دين د مسلمان لپاره ټاکلی حد ايښی دی او ورته يې خپل فرايض ښودلي دي چې پرته له کومه عذره يې سرته ورسوي، پر دې سر بيره مسلمان ته يې د ميانه روۍ غوره کولو لارښوونه کړې د، ترڅو په ده باندې دروند تمام نشي، پيغمبرﷺ مسلمانانو ته عامه لارښوونه کوي چې: په چارو کې غوره حالت منځنی حالت دی،[2] ځکه چې دا د اعتدال حالت له کمي او زياتي څخه لېرې دی.

**پاملرنه**

په اعمالو کې د منځني حالت له غوره کولو څخه مراد نفلي اعمال دي، په فرضي چارو کې لاره ټاکل شوې ده، څوک يې د پرېښودو واک نه لري.




**١**- لاندې کلمې معنا کړئ:

**مَتِينٌ**:

**فَأَوْغِلْ**:

**بِرِفْقٍ**:

**الْمُنْبَتَّ**:

**٢** – اسلام مسلمانان د کوم حالت غوره کولوته هڅولي دي؟

**٣**- آيا په اسلام کې سختي شته؟ واضح يې کړئ.



**کورنۍ دنده**

د راوي له پېژندنې سره د پورتني حديث ژباړه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

---

١ – مسند احمد

٢ – رواه البيهقي

یوویشتم لوست

# په ځوانۍ کې د الله ﷻ بنده ګي

«عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمْ اللَّهُ تَعَالَى فِي ظِلِّهِ يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّهُ إِمَامٌ عَدْلٌ وَشَابٌّ نَشَأَ فِي عِبَادَةِ اللَّهِ وَرَجُلٌ قَلْبُهُ مُعَلَّقٌ فِي الْمَسَاجِدِ وَرَجُلَانِ تَحَابَّا فِي اللَّهِ اجْتَمَعَا عَلَيْهِ وَتَفَرَّقَا عَلَيْهِ وَرَجُلٌ دَعَتْهُ امْرَأَةٌ ذَاتُ مَنْصِبٍ وَجَمَالٍ فَقَالَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَأَخْفَاهَا حَتَّى لَا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ وَرَجُلٌ ذَكَرَ اللَّهَ خَالِيًا فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ» [متفق عليه]

**د ځینو کلمو معناوي**

١- سَبْعَةٌ: اووه.

٢- فِي ظِلِّهِ: ظل سیوري ته وایي دلته د الله ﷻ له سیوري څخه د هغه د عرش سیورى مراد دى.

٣- يَومَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّهُ: له دې ورځې څخه مراد د قیامت ورځ ده. (هغه ورځ چې د الله له سیوري څخه پرته بل سیورى نه وي).

۴ـ إِمَامٌ: هرهغه څوک چې د مسلمانانو د چارو سرپرستي پر غاړه لري.

۵ـ شَابٌّ: ځوان

۶ـ نَشَأَ فِي عِبَادَةِ اللَّهِ: چې د الله ﷻ په بنده ګۍ کې لوی شوی وي.

٧ـ مُعَلَّقٌ فِي الْمَسَاجِدِ: پر مسجدونو پورې یې (زړه) تړلی وي.

٨ـ تَحَابَّا فِي اللَّهِ: د الله ﷻ د رضا لپاره یو له بل سره محبت ساتي.

٩ـ اجْتَمَعَا عَلَيْهِ: د الله ﷻ د رضا لپاره یو له بل سره یوځای شي.

١٠ـ وَتَفَرَّقَا عَلَيْهِ: د الله ﷻ د رضا لپاره یو له بل څخه جلا شي.

١١- دَعَتْهُ: بلنه ورته ورکړي.

١٢ـ ذَاتُ مَنْصِبٍ وَجَمَالٍ: د عزت او ښایست څښتنه.

١٣ـ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ: له سترګو څخه اوښکې توی شي.

### د حدیث ژباړه

له حضرت ابوهریرهﷺ څخه روایت دی چې، پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: اووه کسان دي چې الله ﷻ به یې په هغه ورځ د عرش ترسیورې لاندې ساتي چې بل هېڅ سیوری به نه وي خو یوازې دده د عرش سیوری به وي: یو عادل پاچا، بل هغه ځوان چې د الله ﷻ په عبادت کې لوی شوی وي، بل هغه څوک چې زړه یې په مسجدونو پورې تړلی وي، بل هغه دوه کسان چې یو د بل سره د الله ﷻ په خاطر مینه کوي، کله چې یوځای کېږي هم د الله ﷻ د رضا لپاره یو ځای کېږي او چې کله یو له بل څخه جلا کېږي هم د الله ﷻ د رضا په خاطر یو له بل څخه بېلېږي – یعنې یو د بل سره ناسته او ولاړه یې یوازې د الله ﷻ د رضا په خاطر وي نه د کوم بل دنیوي غرض په موخه بل هغه کس چې له هغه څخه داسې ښځه د بدکارۍ غوښتنه وکړي چې په خلکو کې د مقام خاونده او ښایسته وي او دی ورته په ځواب کې ووایي: زه له الله ﷻ څخه وېرېږم. بل هغه څوک چې کله د الله ﷻ په لاره کې مال خیرات کوي، نو داسې په پټه یې ورکوي چې کیڼ لاس په دې نه پوهېږي چې ښي لاس څه شی خیرات کړل، بل هغه څوک چې کله د الله ﷻ یادونه په یوازیتوب کې کوي، نو له سترګو څخه یې اوښکې بهېږي.

### د حدیث حکمت

الله ﷻ د خپلې مهربانۍ له مخې د ځینو نېکو اعمالو د سرته رسولو ډېرې زیاتې ښېګڼې ذکرکړې دي، تر څو د داسې خصلتونو او عملونو خاوندانو ته له یوې خوا د ډېر خیر زیری ورکړي او له بل پلوه، د داسې اشخاصو او د نورو تر منځ توپیر په ګوته کړي، دا په حقیقت کې د الله ﷻ له لورې خلک نیکیو ته رابلل او هڅول دي په همدې غرض پیغمبر ﷺ په دې حدیث کې د هغو اووکسانو ستاینه کړې چې د ډېرو غوره اعمالو څښتنان دي، که څه هم دغه مقام په نورو احادیثو کې د نوروکسانو لپاره هم ذکر شوی دی، لکه د الله ﷻ د لارې غازي، پوروړي ته مهلت ورکوونکی، له پور وړي سره مرسته کوونکی، مسجد ته زیات پل وهونکی او داسې نور.

### د حدیث شریف ګټې

#### ۱ـ د عادل امام فضیلت

په اسلامي شریعت کې عدل او انصاف ډېر لوې فضیلت لری، د اسلام مقدس دین عدل پر هر چا لازم کړی دی، که هغه مشر دی او که د مسلمانانو د کارونو نور واکمنان، لکه:

قاضیان، وزیران، والیان او داسې نور، آن تردې چې مسلمان باید په کورنۍ کې هم له عدل څخه کار واخلي، لکه د خپلو بچو تر منځ مساوات، د خپلو بیبیانو تر منځ عدالت.
دا چې د عادل پاچا د عدل لمنه ډېره پراخه وي او پر ټول رعیت د زړه سوي او ترحم سیوری وي، او ټول وګړي ورڅخه ګټه اخلي، همدارنګه د ده د ظلم په صورت کې ټول خلك متضرر وي، ځکه نو عادل پاچا له دومره لوړې مرتبې څخه برخمن دی.

**۲ـ په ځوانۍ کې بنده ګي**

د ځوانۍ وخت د ژوند ډېره ارزښتناکه مرحله ده. د بنده ټول جسمي، ذهني، عقلي او فکري قوتونه وده کوي، نو په کار ده چې ځوان دغه قوتونه د الله ﷻ په بنده ګۍ اوعبادت کې مصرف کړي. ځوك چې خدای ورکړي قوتونه د خپلو خواهشاتو پر ځای د الله ﷻ په عبادت کې مصرفوي د ډېر لوی فضیلت او ستاینې وړ دی.

**۳ـ له مسجدونو سره زیاته علاقه**

جوماتونه د الله ﷻ کورونه دي. په دې معنا چې د فرضي او نفلي عبادتونو، د الله ﷻ د تسبیح، ذکر، د تعلیم او تعلم او د نورو غوره کارونوځایونه دي، نو د هر چا اړیکه چې د الله ﷻ له کورونو سره زیاته وي، هغه الله ﷻ ته ډېر نژدې او د لوی مقام څښتن دی، ځکه چې له مسجدونو سره مینه انسان د منکراتو او هر ډول بدیو څخه لېرې ساتي.

**۴ـ د الله ﷻ لپاره مینه**

د خلکو ترمنځ اړیکې زیاتره په مادي، جنسي، او د خپلولۍ پر بنسټونو ولاړې وي، مګر په اسلام کې غوره اړیکې هغه دي چې د الله ﷻ پرمحبت ولاړې وي او د اړیکو لامل د الله ﷻ اطاعت وي یعنې دهغه چا سره دوستي او ملګرتیا کول چې د الله ﷻ څخه ویره لري او هغه ته نژدې وي. ځوك چې یوازې الله ﷻ ته د قرب او نژدیوالي پر بنسټ یو له بل سره ناسته ولاړه کوي داسې کسان الله ﷻ ته ډېر خوښ وي.

**۵ـ تقوی او پرهیزګاري**

هر انسان یو لړ غوښتنې او رغبتونه لري چې د اسلام مبارك دین د دغو غوښتنو لپاره معلومې لارې چارې په ګوته کړي دي، خو شیطان تل د دې هڅه کوي چې انسان د خپلو نفسي خواهشاتو په لومه کې راګیر کړي او له همدې لارې څخه یې په ګمراهۍ کې اخته کړي.
یوله هغو غوښتنو او رغبتونو څخه چې بشري نفس ورته زیات میلان کوي، ښځه ده، دا میلان هغه وخت زیات وي چې کله ښځه ښایسته وي او لوړې کورنۍ ته منسوبه وي، هرکله چې داسې ښځه د مسلمان څخه د بدکارۍ غوښتنه وکړي او مسلمان د داسې فتنې او ابتلاء پر مهال د الله ﷻ څخه ویره اختیار کړي او له قدرت سره سره ورڅخه ډډه

وکړي الله جل جلاله به يې په خپل رحمت کې ونغاړي. همدارنګه که چېرې ښځه د داسې حالت سره مخ شي چې ښايسته ځوان چې مال هم زيات لري دې ته د زنا دعوت ورکړي او هغه ورڅخه انکار وکړي او ورته ووايي چې زه له الله جل جلاله څخه وېرېږم، بې له شکه دغې ښځې هم دا لوړ مقام ترلاسه کړ.

**۶ـ په پټه خيرات ورکول**

صدقه او خيرات ورکول لوی فضيلت لري.خيرات ورکول داسې عبادت دی چې ګناهونه رژوي، د مسلمان اجرونه زياتوي، مسلمان له اور څخه ژغوري او د الله جل جلاله د رضامندۍ سبب ګرځي.

صدقه ورکول په پټه اوښکاره په دواړو حالتونو کې غوره کار دی، خو اجر او غوره والی يې هله زيات وي چې په پټه ورکړل شي، آن تر دې چې کيڼ لاس په دې پوه نه شي چې ښي لاس په خيرات کې څه ورکړل مګر دا چې په ښکاره ورکولو کې يې کوم شرعي مصلحت وي.

**۷ـ د الله جل جلاله له وېرې ژړل**

د الله تعالی ذکر او يا د هغه ستر نيک عمل دی چې د هر چا په هر وخت کې لاس ورته رسيږي. څه ځانګړي شرطونه نه لري، په ناسته، ولاړه، په اوداسه او بې اودسه د الله ياد اجر لري، خو که يو څوک له نورو څخه ګوښه د الله تعالی لويي رايادوه کړي او خپل تقصير او بې پروايي ته متوجه شي، ځان ملامت کړي او په سترګو کې يې له وېرې څخه اوښکې راشي، دا د ده د پوره ايمان او اخلاص څرګندونه کوي او له همدې کبله الله تعالی ورته د ستر مقام وعده ورکړې.




۱ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

ا. **مُعَلَّقٌ فِي الْمَسَاجِدِ:**

ب . **تَحَابَّا فِي اللَّهِ:**

ج . **فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ:**

۲ـ خالي ځايونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

- د اسلام مقدس دين......................پرهرچا لازم کړی دی.
- د صدقې اوخيرات اجر هله زيات وي چې په......................... ورکړل شي.

۳ـ په اسلام کې د غوره اړيکو اساس په څه ولاړدی؟



**کورنۍ دنده**

حديث په يادو زده کړئ.

# په لارکې د کښيناستلو آداب

«عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: { إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ }. فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا لَنَا مِنْ مَجَالِسِنَا بُدٌّ نَتَحَدَّثُ فِيهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: { إِذَا أَبَيْتُمْ إِلاَّ الْمَجْلِسَ فَأَعْطُوا الطَّرِيقَ حَقَّهُ }.قَالُوا: وَمَا حَقُّ الطَّرِيقِ؟ قَالَ: {غَضُّ الْبَصَرِ وَكَفُّ الأَذَى وَرَدُّ السَّلاَمِ وَالأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ» [رواه البخاری]

### د راوي پيژندنه

ابو سعيد چې نوم يې سعد د پلار نوم يې مالك نيكه يې سنان، د مدينې د الخدري قبيلې اصلي اوسيدونکی، کنيه يې ابوسعيد چې په همدې سره يې شهرت درلود، له مشهورو اصحابو څخه دی چې په زياتو غزاګانوکې يې ګډون کړی، يو له هغو اصحابوڅخه شمېرل کيږي چې په فقه اواجتهاد کې يې شهرت درلوده، په ٧٤ هجري کال کې يې له فاني دنيا څخه سترګې پټې کړې.

### د ځينوکلمو معناوې

إِيَّاكُمْ: لرې اوسئ

الطُّرُقَاتِ: لارې

أَبَيْتُمْ: نه يې منئ

غَضُّ الْبَصَرِ: د سترګو پټول (ساتل)

وَكَفُّ الأَذَى: له ضرر رسولو نه ځان ساتل

### د حديث شريف ژباړه

له ابو سعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت دی چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: په لاروکې کيناستلو څخه ډډه وکړئ. اصحابو وويل: اې د الله رسوله! په لارو کې له کيناستلو څخه زمونږ چاره نشته، موږ په کې خپلې خبرې کوو. نبي کريم ﷺ وفرمايل: هوکې! چې داسې نشئ کولای، بايد لارې ته د هغې حق ورکړئ (دلارې آداب په پام کې ونيسئ) اصحابو وويل: دلارې حق کوم يو دی؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: د سترګو

کښته کول، خلکو ته له ضرر رسولو څخه ډډه کول، د سلام ځواب ورکول، په نیکو چارو امر کول او له بدیو څخه خلك منعه کول د لارې حقونه دي.

**د حدیث شریف حکمت**

څرنګه چې په لارو او عامو سرکونو کې د خلکو تګ راتګ کېږي او په خپل ورځني ژوند کې ورته ډېره اړتیا لري، نو په دې اساس په حدیث کې بې له اړتیا په لارو کې له ناستې څخه منعه شوې ده، ځکه اکثراً داسې پیښېږي چې په لاره تلونکي خلك د ناستو خلکو له اړخه ځورول کېږي او د اسلام دین له ضرر رسولو څخه منعه کړې ده، که چیرې په ځینې وختونو کې مسلمانان په لاره کې نا سته اړینه ګوري، باید ټول هغه آداب په پام کې ونیسي چې ورسره د تېریدونکو احترام اوعزت وسا تل شي او له هر هغه عمل څخه ځان وژغوري چې د تېریدونکو د ځوریدلو لامل ګرځي.

**د حدیث شریف ګټې**

**۱– په لار کې له کښېناستلو څخه ډډه کول**

په پورتني حدیث کې له اړتیا پرته په لارو کې له ناستې څخه منعه شوې ده، ځکه مسلمان د تل لپاره خلکوته د ګټې او ښیګڼې رسولو په فکر کې وي، له ضرر رسولو څخه یې ځان ژغوري او زیار باسي چې د ده له ژبې، نظر او لاس څخه څوك زیانمن نشي او که چیرې په لار کې نا ستې ته اړکېږي، بیا به ټول حقوق په پام کې نیسي، ترڅو د ده دکښیناستلو له کبله څوك زیانمن نشي.

**۲ – د ناروا کتلو(نظر)څخه ځان ساتل**

مسلمان باید د حرام نظر(کتلو) څخه ځان وساتي، هغه که په هر ځای کې وي، ځکه د نارواوو په لورې کتل انسان په ګناه کې ښکیلوي، په اخلاقي فساد یې اخته کوي او دا حکم مسلمان سړي اومسلمانې ښځې دواړو ته متوجه دی په قرآن کریم کې پدې اړه روښانه لارښوونه شوې ده: ﴿قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ...... " -: وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ﴾ [النور: ۲۹ – ۳۰ ]

**ژباړه:** نارینه وو مؤمنانو ته ووایه چې خپلې سترګې کښته وساتي او مسلمانو ښځو ته ووایه چې خپلې سترګې کښته کړي.

**٣ – له ضرررسولو څخه ځان ژغورل**

کله چې په لار کې ناسته اړينه وي، په داسې حالت کې بايد لازمې لارښوونې په پام کې ونيول شي، ځينې يې دا دي چې د مجلس له کبله په لارويو لار تنګه نشي، مجلس بايد د خلکو د سپکا وي لامل ونه ګرځي، څکه مسلمان هغه چا ته ويل کېږي چې د هغه له لاس او ژبې څخه مسلمانان په امن وي، په ځانګړې توګه د ښځو د څورونو سبب نشي او همدا راز مجلس د تجسس لپاره نه وي.

**٤ – د سلام ځواب ورکول**

سلام داسې سنت عمل دی چې له ځان سره د امن او محبت پيغام لري او ډاډ ورکوي چې په ډاډه توګه ژوند وکړئ، له دې کبله سلام اچول د ايمان ښنه بلل کېږي او ځواب يې واجب دی، با يد د سلام ځواب په ښه توګه ورکړای شي، دا د قرآن کريم لارښوونه ده. الله تعالی فرمايلي دي: ﴿وَإِذَا حُيِّيتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا﴾ [النساء: ٨٦ ]

**ژباړه:** اوڅوک چې په درناوي سره تاسې ته سلام واچوي، نو هغه ته له هغې نه په ښه توګه ځواب ورکړئ او يا لږ تر لږه همغه شان.

**٥ – د ښو کارونو په لوري بلنه او له بديو څخه منعه کول**

قرآن کريم له مسلمان څخه دا غوښتنه کوي چې په هر حا ل کې په خپله نېک اوسي، نور خلک د نېکۍ لوري ته را وبلي، الله تعالی فرمايي: ﴿وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ [آل عمران : ١٠٤ ]

**ژباړه:** په تاسې کې دې څه خلک ارومرو داسې وي چې د نېکۍ لوري ته بلنه وکړي، په ښو امر وکړي، او له بدو منعه وکړي، کوم خلک چې دا کار وکړي هغوی به بريالي شي.

په زياتو احاديثو کې د ښوکارونو په لور، د بلنې او د بديو د مخنيوي په هکله يادونه شوې ده، دا د هر مسلمان مسؤوليت دی چې د امر بالمعروف او نهې عن المنکر دنده سرته ورسوي، رسول اللهﷺ فرمايي: «مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذَلِكَ أَضْعَفُ الإِيمَانِ».[1]

[1] – صحيح مسلم.

**ژباړه:** تاسو نه چې ځوك ناروا وګوري، سم د لاسه دې هغه په لاس سره منعه کړي، که چیرې یې وس نه وي، په ژبه دې منعه کړي اوکه چیرې په ژبه یې نشي منعه کولای، په زړه کې دې ورسره کینه ولري او دا کمزوري ایمان دی.

د ښو چارو په لور بلنه او له نارواوو څخه منعه ډیره ضروري ده، ځکه په دنیا کې د خلکو ژوند په بېړۍ کې د ناستو خلکو په څېر دی، که چیرې یوکس بېړۍ سورۍ کړي ټول سپاره خلك ورسره ډوبیږي، نو د بدیو مخنیوی د خپل ځان او د ټولنې دساتنې معنا لري.




۱ – د حدیث راوي په لنډه توګه معرفي کړئ.

۲ - لاندې کلمې معنا کړئ:

إِيَّاكُمْ:

اِلطُّرُقَاتِ:

أَبَيْتُمْ:

غَضُّ الْبَصَرِ:

كَفُّ الأَذَى:

۳ – د نېکیو په لور بلنه او د بدیو مخنیوی څه اهمیت لري؟



## کورنۍ دنده

له لوست څخه په استفادې سره په لارکې د کښېناستلو د آدابو په هکله یوه مقاله ولیکئ.

# کورنۍ

**کورنۍ څه ته وايي؟**

ښځې، بچو او نسبي خپلوانو ته کورنۍ ویل کیږي.

د کورنۍ بنیاد ښځه او خاوند بږدي، اولاد ترې پیدا کیږي چې بیا په ټولنه کې د ژوند پړاو پیلوي.

**د کورنۍ جوړولو بنسټ**

کورنۍ د دوو عمده موخو په بنیاد جوړیږي.

**لومړی:** واده کول انساني فطرت ته لبیک ویل دي: د اسلامي شریعت د څرګندو ارزښتونو څخه یو دا دی چې د ځان ګوښه کولو له اصل سره یې مبارزه کړې، انساني فطرت او بشري غریزو ته یې مثبت ځواب ویلی، په حدیث شریف کې چې طبراني او بیهقي روایت کړی رسول اللهﷺ فرمايي:"څوک چې مال ولري، عمر یې د واده عمر ته ورسیږي او واده ونکړي زما له ډلې څخه نه دی" په بل حدیث کې راغلي، هغه درې تنه چې د رسول اللهﷺ د عبادت څخه خبر شول او خپل عبادت ورته هیڅ ښکاره شو، نو د ځان سره یې وویل: مونږ رسول اللهﷺ ته نشو رسېدای، ده ته ټول وړاندیني او وروستني ګناهونه ښښل شوي، ددې درې واړو څخه یو د ځان سره هوډ وکړ چې ټوله شپه به په لمانځه سبا کوي، دویم وویل: ټول کال به روژه نیسم، دریم وویل: زه به ځان د ښځو څخه ګوښه کوم او هیڅ واده به نه کوم، کله چې رسول اللهﷺ د دوی په تصمیم خبر شو ویې فرمایل:"قسم په الله چې زه ستاسې په پرتله د پاک پروردګار نه ډېر ویریږم، ولې سره له دې لمونځ هم کوم او ویدیږم هم، روژه نیسم او کله یې نه نیسم او د ښځو سره نکاح هم کوم، پس هر څوک چې زما د عمل خلاف عمل کوي زما له ډلې څخه ندی".

د پورتنیو نصوصو څخه څرګندیږي چې واده کول په اسلام کې ځانګړی ارزښت لري، تر څو مسلمان انسان د اولادونو د روزنې هغه امانت او لوی مسؤولیت چې د دده په غاړه دی پخپلو اوږو واخلي.

**دویم:** په واده باندې ټولنیزې ښېګڼې تر لاسه کیږي:

روښانه ده چې شرعي واده عامې ټولنيزې ښېګڼې لري چې مهمې به يې په لاندې کرښو کې بيان کړو:

**الف: د انساني نسل ساتنه**

په واده کولو سره انساني نسل زياتيږي چې دا لړۍ په واده دوام مومي، پاک الله جَلَّ جَلَالُهُ دا ټولنيز او انساني مصلحت ستايي او فرمايي:﴿وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَجَعَلَ لَكُمْ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ بَنِينَ وَحَفَدَةً﴾ [النحل ۷۲] الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو ته ستاسو له جنس څخه جوړه درکړه، بيا يې د دې جوړې څخه زامن او لمسي درکړل. په بل ځای کې فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً﴾ «اې خلکو! د هغه خدای جَلَّ جَلَالُهُ څخه وويريږئ چې تاسو يې له يوه نفس څخه وزيږولئ او له همدې نفس څخه يې د هغه جوړه پيدا کړه، بيا يې دواړو څخه ډېر سړي او ښځې خواره واره کړل»

**ب- د نسب ساتل:** په مشروع واده سره پيدا شوي اولادونه په فخر خپلو پلرونو ته ځانونه منسوبوي چې دا وياړ اولادونو ته د ذهني آرامۍ، په ځان باوري کېدلو او انساني کرامت لامل ګرځي. که چېرې په ټولنه کې شرعي ودونه نه وي، ټولنه به دداسې وګړو څخه جوړه شي چې نه به انساني کرامت او احترام لري او نه به خپل نسب پېژني چې په پای کې به ټولنه د فساد په چپو کې ډوبه شي.

**ج: د اخلاقي بې لاريو څخه داسلامي ټولنې خوندي والی:** په شرعي واده سره ټولنه او د ټولنې وګړي د اخلاقي فساد څخه ژغورل کيږي، هر کله چې شهواني غريزه په حلاله لار مړيږي ټول امت -څه فرد او څه ډله- په غوره اخلاقو سمباليږي، خپل مسؤوليت به داسې ترسره کوي چې څنګه خدای جَلَّ جَلَالُهُ غوښتي وي، د همدې لويو اخلاقي ښېګڼو او ټولنيزو حکمتونو له کبله رسول الله ﷺ ځوانانو ته توصيه کوي، فرمايي:" اې ځوانانو! هر څوک چې له تاسو څخه د نکاح کولو قدرت لري بايد چې نکاح وکړي، ځکه چې دا د سترګو د ټيټولو(د شهوت څخه د سترګو مړولو) او د شرمګاه د ساتلو لپاره غوره لاره ده، څوک چې د نکاح طاقت نلري، په دوی لازم دي چې روژه ونيسي، تر څو په ده کې د شهوت لمبه سړه کړي"

**د- د ناروغيو څخه د ټولنې روغوالی:** شرعي واده هغه لاره ده چې ټولنه د ساري وژونکو ناروغيو لکه ايډز، سوزاك او نورو له شره ژغوري، دا ډول ناروغی د زنا، فحشا او نا مشروعو تړاوونو زيږنده ده او په نکاح سره ددې مخنيوي کيږي.

**هـ - روحي او ذهني آرامي**

په شرعي واده سره د ښځې او خاوند ترمنځ د محبت، دوستۍ او رحمت حس رامنځته کيږي. کله چې خاوند د ورځې په پای کې له کار څخه وزګار او کور ته ستړی ستومانه ولاړ شي، خپلې ښځې او ماشومانو سره کښيني، ټول هغه غمونه چې د ورځني کار په لړۍ کې ورته پيدا شوي هيريږي. په همدې توګه ښځه او خاوند د يو بل په څنګ کې د آرام او نېکمرغه ژوند څخه خوند اخلي.چې الله ﷻ ورڅخه په خپل کلام کې په ډير ښکلي تعبير داسې يادونه کوي، فرمايي: ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا لِتَسْكُنُوا إِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَوَدَّةً وَرَحْمَةً إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ [روم ۲۱] د الله ﷻ د حکمت او قدرت له دلايلو څخه يو دا دی چې تاسې لپاره يې ستاسو له جنس څخه جوړه پيدا کړه، تر څو(د هغو په څنګ کې) سکون تر لاسه کړئ، بيا يې ستاسې ترمنځ دوستي او لورېينه پيدا کړه، په يقين سره دې کې د الله ﷻ د قدرت او حکمت دلايل د هغه چا لپاره دي چې فکر کوي.

و- ښځه او خاوند ددې لپاره يو له بل سره مرستندويه دي چې يوه نيکمرغه کورنۍ جوړه او **صالح اولادونه وروزي:** د واده تر سيوري لاندې ښځه او خاوند دواړه د کورنۍ په جوړولو او مسؤوليت ته په اوږه ورکولو کې يو له بل سره مرسته کوي، پدې معنا چې لومړی د دويم کار پوره کوي. ښځه هغه کارونه کوي چې د عهدې څخه يې وتلای شي، لکه د کور کارونه او د کور دننه اولادونو ته پاملرنه او دې ته ورته نور. سړي هغه کارونه کوي چې توان يې لري او له طبيعت سره يې برابر وي، لکه د مالي امکاناتو برابرول، د دښمنانو څخه د کورنۍ حمايت او د ورځني مصيبتونو څخه د دوی ژغورل. د مرستندويه انسانانو تر سيوري لاندې صالح، مؤمن، فداکار او با مسؤوليته نسل رامنځ ته کيږي چې بيا به ټولې کورنۍ د محبت، صلحې، آرامۍ او سوکالۍ په فضا کې ژوند تيروي.

**ز- پلرنۍ او مورنۍ عاطفه را پارېږي**

د واده په اغېز د ښځې او خاوند په منځ، کې د عاطفې او مسؤولیت روح راټوکېږي، بیا دې ته اړ کېږي چې د خپلو ماشومانو د آرام او استقرار لپاره ډېر زیار وباسي بې خوبي او ستونزې. و ګالي، تر څو اولادونه یې سالمه روزنه تر لاسه کړي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د واده د موخو، ګټو او ټولنیزو مثبتو مسؤولتونو په اه په خپل منځ کې خبرې وکړي.




۱- کورنۍ څه ته وایي؟

۲- د کورنۍ جوړښت په کوم بنسټ ولاړ دی؟

۳- د دې اصل د ثبوت لپاره چې واده د فطرت غږ ته لبیک ویل دي، یو حدیث وواياست.

۴- دا څنګه ثابتوئ چې په واده سره انساني نسل ساتل کېږي؟

۵- په دې باندې څه دلیل لرئ چې په واده سره ټولنه د اخلاقي ناولتیا څخه ژغورل کېږي.

۶- واده د روح د آرامۍ سبب ګرځي، په دې هکله د قرآن کریم څخه دلیل راوړئ.

۷- د ښه اولاد د روزنې لپاره ښځې او خاوند ته څه کول پکار دي؟

۸- په واده سره ښځې او خاوند ته کومه روحیه پیدا کېږي؟

# نکاح

مخکې مو وویل چې الله تعالی په انسان کې جنسي غریزه ایښې ده، تر څو د انساني نسل د پایښت سبب شي، دې مقصد د لاس ته راوړلو لپاره اسلامي شریعت د نر او ښځې د یو ځای ژوند کولو روا لاره نکاح ګرځولې ده.

### د نکاح تعریف

**په لغت کې**: نکاح یو ځای کولو ته وایي.

### په شرعي اصطلاح کې

۱.نکاح هغه عقد ته ویل کیږي چې نارینه او ښځې ته له یو بل څخه جنسي ګټه اخیستل روا کړي.

### د نکاح حُکم

د نکاح حُکم د نکاح کوونکي له حالت سره بدلیږي:

أ- **سنت مؤکد نکاح:** د اعتدال په حالت کې نکاح سنت مؤکد ده، د اعتدال حال دا دی چې د جماع، مهر، نفقې وس ولري او په زنا کې د لویدلو ویره ونه لري. رسول الله ﷺ فرمایي: «النِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِي فَمَنْ لَمْ يَعْمَلْ بِسُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي»[۱] «نکاح زما له سنتو څخه ده او څوک چې زما په سنتو عمل نه کوي له ما څخه نه دی»

نو که له حرامو څخه د ځان ساتنې لپاره نکاح وکړي، الله تعالی ثواب ورکوي.

ب- **واجب نکاح:** د هغه چا لپاره نکاح کول واجب دي چې د ډیرې اشتها سره د مهر او نفقې وس هم ولري او د نکاح د نه کولو په صورت کې په زنا کې د لوېدو وېره ولري.

له واجب څخه مراد لازم والی دی، نو عملي فرضو او واجبو دواړو ته شاملیږي.

ج- **مکروه[۲] نکاح:** د هغه چا لپاره چې ویره ولري که نکاح وکړم، نو د نفقې د نشتوالي په وجه به ورڅخه ظلم او ځورونه وشي، یعنې د زوجیت مادي او معنوي حقوق به

---

۱ - مسند الصحابة في الکتب الستة.

۲ - له مکروه څخه تحریمي مکروه مراد ده.

مراعات نه شي کړای، نو د ده لپاره نکاح کول مکروه دي، ځکه نکاح د ثواب حاصلولو او د پاك لمنۍ لپاره روا شوې ده، نه د ظلم او ځورونې په خاطر، ځکه د حرامو کول ورڅخه ترسره کیږي او د نکاح مصلحتونه په کې له منځه ځي.

### د نکاح ځنډول

که نکاح د معقول مقصد لپاره وځنډول شي، لکه د تحصیل پوره کول، د مناسب کسب او کار تر لاسه کول او یا د ضروري شیانو لکه د اوسېدو ځای او د واده مصارف تأمینول، دا څه باك نه لري لکه په یاد شوي حدیث کې چې لارښوونه شوې (یا معشر الشباب....) نو ځوانان دې دا حالت په زغم سره تحمل کړي او که دا لاملونه نه وي بیا د نکاح ځنډول په کار نه دي، ځکه په نکاح کې ډېرې ښېګڼې دي چې هغه په مجرد ژوند کې په لاس نه راځي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د نکاح کولو ګټې او ډولونه په خپل وار سره په ګوته کړي.




١. نکاح تعریف کړئ.
٢. د نکاح د مشروعیت (رواتوب) حکمتونه بیان کړئ.
٣. د نکاح حکم څه دی؟ تفصیل ورکړئ.
٤. آیا د نکاح ځنډول پکار دي؟




زده کوونکي دې د نکاح د حکمتونو په هکله یوه مقاله ولیکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

# د نکاح مقدمات

له پخوا څخه د خلکو دا عادت و چې له واده څخه د مخه به د هلك دکورنۍ لخوا د نجلۍ کورنۍ ته یو څوك د خواستگارۍ(غوښتنې) لپاره ور استول کیده، همدغه عادت د شریعت له خوا هم د منلو وړ وگرځید چې په عربي کې ورته خِطبه ویل کیږي.

## د خِطبې تعریف

**په لغت کې:** خِطبه د خاء په کسرې (زیر) د نکاح غوښتنې ته وایي.

**په اصطلاح کې:** له یوې ټاکلې ښځې سره د واده کولو رغبت ښکاره کولو ته خِطبه ویل کیږي، برابره ده د هغه یادونه ښځې ته وکړي او یا د هغې ولي ته.

**د خِطبې حُکم:** خِطبه د نکاح لپاره یوه وسیله ده چې فقهاء کرامو رحمهم الله مستحب گڼلې ده.

په یوې ښځې مرکه کول چې شرعي ایجاب او قبول پکې نه وي د وعدې په معنا ده او رښتینی عقد نه دی، ځکه د نکاح عقد د ایجاب او منلو له لارې تر سره کیږي.

## د ښځې غوره کول

د اسلامي شریعت له مخې په دې کې شك نشته چې نیکمرغه واده د سړي لخوا د ښې ښځې په ټاکلو او همدا شان د ښځې لخوا د مناسب سړي په خوښولو پورې اړه لري او د ښې ښځې اختیارول هغه دي چې لاندې خبرې په پام کې ونیول شي:

**۱- دینداري**

سړي ته پکار ده چې دینداره او د ښو اخلاقو خښتنه ښځه غوره کړي، ځکه دینداري ښځه دې ته اړباسي چې د خپل خاوند اطاعت وکړي، د هغه د نیکمرغۍ او هوسایني لپاره کار وکړي، د خپل پت او عزت په ساتلو د میړه پت او عزت وساتي، د خپلې تقوا، ریښتینولۍ او اخلاص څخه یې هر وخت خوښ او ډاډمن وگرځوي، که ښځې د ځان لپاره د سړي د غوره کولو په هکله د دینداری صفت په نظر کې ونیسي، نو د روښانه راتلونکي په لور به یې گام ایښی وي.

په یوه حدیث کې رسول اللهﷺ فرمایي: «تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ لِمَالِهَا وَلِحَسَبِهَا وَجَمَالِهَا وَلِدِينِهَا فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ»[1]

د حدیث **ژباړه:** خلك له ښځې سره د څلورو خصلتونو لپاره نکاح کوي:

د هغې د مال لپاره، د هغې د نسب (د اهمیت) لپاره، د هغې د ښایست لپاره او د هغې د دینداري لپاره او ته په دینداري پسې وګرځه، که داسې دې ونکړل لاسونه دې سپیره شه.

**۲- پیغله**

غوره دا ده چې پیغله په نکاح شي، ځکه په هغې کې د مینې دوه اړخیزې اړیکې ټینګیږي او د ګډ تفاهم او د بچیانو د تولد لپاره مناسبه وړتیا لري. له حضرت جابرﷺ څخه روایت شوی دی چې رسول اللهﷺ ما ته وفرمایل: (اې جابره! له پېغلې سره دې واده کړی او که له کونډې سره؟ هغه وویل: له کونډې سره. هغهﷺ وفرمایل: ولې دې له پیغلې سره واده نه کاوه چې دواړو به مینه او لوبې سره کولې). خو که د یوه چا ظروف دا غوښتنه وکړي چې کونډه یا پخه ښځه باید په نکاح واخلي، لکه چې سړی په عمر پوخ وي، یا د خپلو اولادونو لپاره په کور کې سرپرست لټول وغواړي یا نورې ګټې په نظر کې ونیسي، نو د پخې ښځې سره نکاح کول ورته غوره دي.

**۳- مینه ناکې او اولاد راوړونکې:** سړي ته پکار ده چې مینه ناکه او اولاد راوړونکې ښځه خوښه کړي، ځکه همداسې ښځه له خپل سړي سره مینه او ښه چلند کوي، له دواړو خواوو څخه دمینې کول د زوجیت د ژوندانه د پایښت، خوشحالۍ او د ښو اولادونو لپاره ډیر اغیزمن دي، رسول اللهﷺ فرمایي: (تاسو له مینه ناکو او اولاد راوړونکو ښځو سره ودونه وکړئ، زه د قیامت په ورځ ستاسو په ډیر والي ویاړ کوم)[2]

**۴- عزتمنه کورنۍ:** سړي ته مستحب ده چې ښځه له عزتمنې کورنۍ څخه ځان ته غوره کړي هغه چې د کورنۍ غړي يې په نېکو اخلاقو او ښو خویونو پیژندل شوي وي، تر څو ددوی اولادونه ورڅخه دغه ځینې صفتونه او یا ټول خپل کړي، دا طبیعي او علمي خبره ده چې د پلرونو او میندو ډیر صفتونه اولادونو ته په میراث نقلیږي، په دې خبره ډیر احادیث دلالت کوي، له عایشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې وایي رسول اللهﷺ

---

۱ - متفق علیه.

۲ - سنن أبی داود.

وفرمایل: «تَخَيَّرُوا لِنُطَفِكُمْ فإِنَّ النِّساءَ يَلِدْنَ أشْباه إِخْوَانِهِنَّ وأخَوَاتِهِنَّ»[1]. "تاسو د خپلو نطفو لپاره ښه ځایونه غوره کړئ، ځکه ښځې خپلو ورونو او خویندو ته ورته زیږوي".

**۵- په نسب کې لېرې والی:** غوره داده چې ښځه له لېرې نسب څخه وي، له نژدې خپلوانو څخه نه وي، ځکه په نسب کې لېرې ښځه غښتلي او صحتمند اولادونه زېږوي، ویل شوي دي چې: "له لېرې کورنیو څخه ښځې وکړئ څو مو اولادونه کمزوري نه وي".

علمي تحقیقاتو دا منلې چې نژدې خپلوانو سره واده کول په ماشومانو کې د ارثي ناروغیو د څرګندېدو لامل ګرځي.

**د خاطب غوره کول**

لکه سړي ته چې لازم دي چې نېکه ښځه خوښه کړي، همدا شان د ښځې کورنۍ ته هم پکارده چې د سړي او ځوان په هکله ښه انتخاب وکړي او خپلې پېغلې ته مناسب سړی غوره کړي، هغه چې لاندې صفتونه ولري:

**۱- دینداري:** پکار ده چې خطبه کوونکی سړی دینداره، د ښو اخلاقو او مېرانې څښتن وي، دا د صالح زوج له مهمو صفتونو څخه شمېرل کیږي، نو که سړی پرهیزګاره وي د الله ﷻ ویره یې په ښځه له ظلم کولو څخه راګرځوي، د ښه ژوندانه او د ښځې د حقوقو د تأمین خواته یې راکاږي، رسول الله ﷺ له دینداره او د ښو اخلاقو له څښتن سره د نکاح کولو امر کوي ولو که مسکین هم وي، فرمایي: "إِذَا جَاءَكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ دِينَهُ وَخُلُقَهُ فَزَوِّجُوهُ، إلا تَفْعَلُوا تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الأَرْضِ، وَفَسَادٌ عَرِيضٌ".[2] "کله چې تاسو ته داسې څوک راغی چې دین او اخلاق یې غوره ګڼئ، نو د واده کولو غوښتنه یې ومنئ او که دا کار ونکړئ، نو په ځمکه کې به فتنې او پراخه فساد رامنځ ته شي."

په رښتیا هم که دینداره سړي ته نجلۍ په نکاح ورنه کړل شي، د غریبۍ په وجه خالي لاس ولاړ شي، نو ددې ویره ده چې پارونې به یې په زړه کې پریوزي او په فتنو کې به ولوېږي، همدا شان که ښځه بې دینه او بد اخلاقو ته په نکاح ورکړل شي، یا د مالدار سړي په انتظار کې پرېښودله شي، نو ددې ویره ده چې په فساد، ناوړه او فاحشو کړو وړو

---

۱ - سنن ابن ماجه.

۲ - مسند الصحابة في الکتب الستة.

به اخته شي او په دې کار سره په د نجلۍ پلار له خپلې لور سره چې دده په لاس کې د الله ﷻ امانت دی خیانت کوي او په خپل لاس به خپله لور د ټول ژوند لپاره په عذاب او په ډیرو خطرونو کې اچوي.

**۲- د خاطب او مخطوبې تر منځ د عمر نژدیوالی:** مناسب ده له نجلۍ سره د سړي عمر نژدې وي او دا ښه کار نه دی چې داسې چاته نجلۍ په نکاح ورکړل شي چې په عمر کې یې ډیر توپیر وي په داسې ډول چې د هغه عمر د هغې د پلار او نیکه سره برابر وي، ځکه نېکمرغه واده هغه دی چې د مینې او محبت په اساس ولاړ وي او د عمر نژدې والی یو له هغو اسبابو څخه دی چې د ښځې او خاوند تر منځ د مینې او محبت اړیکې په ځای کوي.

دا په دې معنا نه ده چې د ډیر عمر لرونکي سره د نجلۍ نکاح جواز نه لري، بلکې عرف او مصلحت ته په کتو سره مناسب داده چې د عمر نژدې والی په نظر کې ونیول شي، ترڅو واده نېکمرغه او سوکاله شي.

**مخطوبې ته کتل**

خاطب ته شریعت دا رواکړې ده چې مخکې له نکاح څخه مخطوبه ووینې، په دې کې حکمت دادی چې خاطب د ښځې په هکله چې دده په نکاح کې راتلونکې ده او دده د ژوند شریکه جوړیدونکې ده معلومات ولري.

کله چې څوک وغواړي له کومې ښځې سره واده وکړي تر واده کولو د مخه ورته کتل جواز لري. نبي اکرم ﷺ فرمايي: **«ابصرها فإنه احری أن يؤدم بينكما»**[1]

" ویې گوره دا ستاسې تر منځ د مینې پیدا کېدو غوره لاره ده".

**د یوه چا په مرکه کې د بل چا له لوري مرکه**

کله چې کومه نجلۍ یو چا وغوښته او د پلار یا کورنۍ له لوري ورته کوم ځواب ونه ویل شو بل چا ته دا نه ده روا چې په دې نجلۍ باندې جرگه وکړي، ځکه نبي اکرم ﷺ ورڅخه منع کړې ده، خو که چیرې د نجلۍ د کورنۍ له لوري ځواب شوی وو، بیا بل چا ته روا ده چې مرکه پرې وکړي.

---

۱- سبل السلام ٤/٤٣٧ النظر الي المخطوبة

**د مخطوبې ښځې د نه غوښتلو حکمت**

په دې کې شک نه شته چې یوه ښځه یو چا غوښتې وي او د ځواب په انتظار وي، بل څوک مداخله کوي او ځان ته یې نکاح کول وغواړي دا د لومړي خاطب لپاره زیان دی کله داسې هم پیښیږي چې همدا کار د کینې، دښمنیو او شخړو لامل شي، په داسې حال کې اسلام د ټولو هغو اسبابو څخه مخنیوی کوي چې هغه د اختلافاتو او دښمنیو سبب ګرځي.

**فعالیت**

۱. د غوښتلو رواجونه بیان او له شریعت سره یې پرتله کړئ.

۲. ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ډلو وویشي چې د نکاح د خطبې په تعریف، مقدماتو، د مخطوبې او خاطب په ښیګڼو خبرې وکړي.




۱. د خِطبې تعریف څه دی؟

۲. د خِطبې حکم بیان کړئ.

۳. د ښځې په غوره کولو کې کومې خبرې په پام کې نیول پکار دي؟

٤. د خاطب په غوره کولو کې کوم صفات لرل پکار دي؟

٥. آیا د خاطب او مخطوبې تر منځ د عمر نژدېوالی ضروري دی؟

٦. آیا مخطوبې ته کتل روا دي؟

# د نکاح ارکان او شرطونه

د نکاح د عقد د صحت لپاره ارکان او څه شرطونه ایښودل شوي دي چې د هغو په پام کې نیول اړین دي، په دې لوست کې يې موږ بیانوو.

## د نکاح ارکان

دنکاح عقد په دوو ارکانو ولاړ دی:

۱. ایجاب
۲. او قبول.

**ایجاب:** ایجاب هغه لومړنی لفظ او خبره ده چې له عاقدینو[۱] څخه د یوه له خوا وویله شي که هغه د زوج او یا دهغه د وکیل یا ولي لخوا، یا د زوجې یا د هغې د وکیل یا ولي لخوا وویله شي.

**قبول:** قبول، هغه دویم لفظ او خبره ده چې له ایجاب څخه وروسته د عاقدینو، له دویم اړخ څخه صادره شي.

لکه اول لوری چې ووايي: ما خپله لور په نکاح درکړه او دویم لوری ووايي ما په نکاح کړه، یا ما قبوله کړه.

## د نکاح الفاظ

په هر هغه لفظ چې د شیانو تملیك ورباندې راځي په هغې باندې نکاح هم تړل کېږي. لکه د نکاح، تزویج، هبې، صدقې او عطیې (ورکړې) الفاظ، په دې شرط چې نیت یې د نکاح وي او شاهدان هم دده په مقصد پوه شي.

## د نکاح د الفاظو څرنګوالی

۱- نکاح به په داسې الفاظو تړې چې په تېره زمانه دلالت کوي، لکه یو سړی د نجلۍ پلار ته ووايي: ما ستا لور په نکاح کړې وه، هغه ورته په ځواب کې ووايي: مادرکړې وه.
۲- که چیرې يو لفظ ماضی او بل مضارع وي بیا هم نکاح صحیح ده، لکه د نجلۍ پلار سړي ته ووايي: ما لور درکړه سړی ورته په ځواب کې ووايي: ما په شرعي نکاح قبوله

---

۱ - عاقدین: (د تړون دواړه اړخونه).

کړې وه، یا داسې: هلك د نجلۍ پلار ته ووايي: ماته دې لور په نکاح راکړه، د نجلۍ پلار ورته په ځواب کې ووايي، ما درکړې ده.

**مسايل**

- په لیک سره هم نکاح تړل کیږي په دې شرط چې غائب وي، همدا راز د استازي په استولو هم صحیح ده.
- د ګونګي نکاح په لیك او اشارې سره تړل کیږي.
- له عربی څخه پرته په نورو ژبو د نکاح تړل په هغه الفاظو چې په نکاح دلالت کوي جواز لري، ځکه په عقدونو کې معانیو ته اعتبار ورکول کیږي او کله چې د عربي له ویلو عاجز وي، نو هغه ورڅخه ساقطیږي لکه د ګونګي په لیك او اشاره چې نکاح تړل کیږي.

**د نکاح شرطونه**

د نکاح د تړلو د صحت لپاره مهم شرطونه په لاندې ډول بیانیږي:

١. ایجاب او قبول به په یوه مجلس کې ترسره کیږی یعنې د عقد په مجلس کې به وي.

٢. ایجاب او قبول به په لوړ غږ سره کوي چې یو بل یې واوري، تر څو رضایت ښکاره شي.

٣. د ایجاب او قبول الفاظ به دائمي وي او په مؤقت وخت پورې به تړلي نه وي، لکه میاشت، کال او داسې نور، ترڅو د مُتعې نکاح ورڅخه ووځي، د متعې نکاح په څلورو مذاهبو حرامه او باطله ده.

٤. عقد کوونکي به دواړه د عقل خاوندان وي، نو د لیوني او غیر ممیز ماشوم نکاح صحیح نه ده.

٥. عقد کوونکي به بالغ او آزاد وي، دا دواړه د نکاح د نفاذ له شرایطو څخه دي.

٦. شاهدان: شاهدي د نکاح د صحت د شرطونو له جملې څخه ده، د شاهدانو له حضور څخه پرته نکاح نه تړل کیږي. نکاح د دوه نارینه شاهدانو او یا د یو نارینه او دوه ښځینه شاهدانو په شته والي او مخ کې تړل کیږي.

**د شاهدانو لپاره پنځه شرطونه دي**

- عقل، نو د لیوني په شاهدۍ د نکاح تړل صحیح نه دي.

- بلوغ، نو د ماشوم په شاهدۍ باندې د نکاح تړل صحيح نه دي.
- آزادي، نو د غلام په شاهدۍ باندې د نکاح تړل صحيح نه دي.
- اسلام، د مسلمانانو په نکاح باندې د ذميانو شاهدي صحيح نه ده.
- شاهدانو به د دواړو عاقدينو خبره اوريدلې وي، يعنې د خوب وړو شاهدي صحيح نه ده.

۶- د ښځې رضايت: په نکاح کې د ښځې رضايت او خوښه شرط ده که هغه پيغله وي او که کونډه، ولي ته دا حق نشته چې هغه په نکاح کولو مجبوره کړي.

۷- زوج او زوجه به معلوم وي، نو که يو څوک چې دوه لونې ولري او يوه چاته ووايي چې ما يوه لور په نکاح درکړه، دا صحي نه ده، ځکه معلومه نه شوه چې کومه يې مراد ده.




١. نکاح څو رکنه لري؟ بيان يې کړئ.
٢. نکاح په کومو الفاظو تړل کيږي؟ څرنگوالی يې بيان کړئ.
٣. آيا له عربي ژبې څخه پرته په نورو ژبو نکاح تړل جواز لري؟
٤. په ليک سره د نکاح تړل څه حکم لري؟
٥. د نکاح شرطونه څو او کوم دي؟
٦. د شاهدانو شرطونه بيان کړئ.

# ولايت

**د ولايت تعريف**

**ولايت په لغت كې:** قرابت، مرستې او واك ته ويل كيږي.

**ولي په لغت كې:** د دښمن خلاف دى.

**د فقهې په اصطلاح كې:** ولي هغه بالغ، عاقل او ميراث وړونكي شخص ته ويل كيږي چې په يوه كاركې د تصرف كولو واك او اختيار ورسره وي.

**د فقهې په اصطلاح كې:** د چا له اجازې پرته د هغه په كار كې تصرف، قدرت او واك لرلو ته ولايت وايي او دې متصرف شخص ته ولي وايي.

**د ولايت ډولونه**

ولايت په درې ډوله دى:۱- د نفس ولايت.۲- د مال ولايت.۳- د نفس او مال ولايت.

زموږ دبحث موضوع د نفس ولايت دى.

**دنفس ولايت په دوه ډوله دى**

۱- **د اِجبار ولايت:** په بل چا د خبرې د قبلولو واك لرل.

د اجبار د ولايت سببونه درې دي: ۱- وړوكوالى.۲ - ليونتوب. ۳- معتوه(د عقل كم والى).

۲- **د اختيار ولايت:** د ښځې په نكاح وركولو كې د ولي حق دى چې د هغې د خوښې او رضا په اساس وي.

**په نكاح كې د ولي اختيار**

د امام ابوحنيفه او امام ابو يوسف رحمهما الله تعالى په وړاندې عاقله، بالغه او ازاده ښځه د ولي له اجازت څخه پرته خپل ځان په نكاح وركولاى شي، همداشان كولاى شي د خپلې نكاح اختيار وكيل ته وركړي او يا كه چا په نكاح وركړې وي دا ورته اجازه وكړي، خو د هغې لپاره دا مستحب ده چې د خپلې نكاح اختيار ولي ته وركړي، څو د نيكو عاداتو او آدابو چې اسلام د هغوغوښتنه كوي مراعات وشي او كه يې له كُفْءْ او سيال څخه پرته له بل چا سره نكاح وكړه، نو ولي بيا اعتراض كولاى شي.

په حدیث کې راځي چې رسول اللهﷺ وفرمایل: «الأَيِّمُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا وَالْبِكْرُ تُسْتَأْذَنُ فِي نَفْسِهَا وَإِذْنُهَا صُمَاتُهَا»[1] "کومه ښځه چې مېړه یې مړ شوی وي او یا طلاقه شوې وي، هغه تر ولي د خپل ځان ډېره حقداره ده (چې خاوند ځان ته غوره کړي)، له پیغلې څخه به د هغې د نکاح اجازه اخیستله کیږي او د هغې اجازه د هغې سکوت او چوپتیا ده"

**پیغله د خوښې خلاف نکاح ته نه شي مجبورېدای**

بالغه نجلۍ او بالغ هلک نکاح کولو ته نشي مجبوریدای، یعنې د هغې له رضایت څخه پرته د ولي په نکاح ورکول نافذ او عملي نه دي، دا سنت ده چې ولي له پیغلې څخه د هغې د نکاح کولو څخه د مخه د هغې خوښه واخلي او ورته ووایي چې فلانی سړی له تا سره نکاح کول غواړي، نو که یې چوپتیا غوره کړه دا یې خوښه بلل کیږي او که د هغې خوښه وانخلي، نو د سنت خلاف کار یې وکړ او نکاح به بیا هم ددې تر اجازې پورې موقوفه وي، خو د کونډې ښځې او د ځوان هلک سکوت د هغوی موافقه نه شمېرل کیږي، بلکه هغوی به خپله خوښي او ناخوښي په خبره څرګندوي.

**د ولي شرطونه**

۱. بشپړ اهلیت به لري چې هغه بلوغ، عقل او حریت دی، نو د ماشوم، لیوني او معتوه (کم عقله) لپاره ولایت نشته.

۲. ولي او د مولی علیه دِین به سره یو وي، نو د غیر مسلم لپاره په مسلمان ولایت نشته.

الله تعالی ﷻ فرمایي: ﴿وَلَن يَجْعَلَ اللّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلاً﴾ [النساء: ۱۴۱] «الله د کافرانو لپاره پر مسلمانانو د بر لاس کیدو هیڅ کومه لاره نه ده جوړه کړې.»

**د اولیاوو ترتیب**

۱- زوی، د زوی زوی، همداسې ښکته.

۲- پلار، نیکه، همداسې پورته.

۳- سکه ورور، دهغه زامن، همداسې ښکته.

---

۱ - صحیح مسلم

۴- سکه تره، د هغه زامن.

۵- د پلار تره، دهغه زامن، بیا د نیکه تره بیا د هغه زامن، همداسې.

له دې وروسته بیا سببي عصبې ته ولایت او واك دی، که دا هم نه وي بیا امام او چارواکي ولي جوړیږي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي او په نکاح کې د ولي د اختیار، د پیغلې له خوښې پرته په اجبار سره د نکاح د حکم او د اولیاوو د ترتیب په هکله خبرې اترې وکړي.




۱. ولایت څه ته وایي؟ تعریف یې کړئ

۲. ولي څوك دی؟

۳. د ولایت ډولونه کوم دي؟

٤. د نفس د ولایت ډولونه بیان کړئ.

۵. په نکاح کې د ولي اختیار بیان کړئ.

٦. آیا پیغله د هغې د خوښې پر خلاف نکاح ته مجبوره کېدای شي؟

۷. د ولي شرطونه کوم دي؟

۸. د اولیاوو ترتیب بیان کړئ.

# كفاءت

**د كفاءت تعريف**

كفاءت په لغت کې مساوات او برابرۍ ته وايي او د فقهاوو په اصطلاح کې د سړي او ښځې برابروالی په هغه څه کې چې په نکاح کې معتبر دی کفاءت بلل کيږي.

**۲ – د چا کفاءت معتبر دی؟**

په نکاح کې د سړو د لوري کفاءت معتبر دی او د ښځو له لورې اعتبار نلري، معنا دا چې خاوند بايد د ښځې سيال وي او ترينه ټيټ نه وي.

**۳ – د کفاءت د غوښتنې حق**

د کفاءت حق د ښځې او د هغې د اولياوو حق دی، نو ښځه په خپلو وليانو حق لري چې سيال ته يې ورکړي او وليان هم حق لري څو د دوی خور يا لور سيال سړی په نکاح واخلئ يعنې د ديني التزام، ټولنيز حالت او دود له پلوه بايد دواړه سره برابر وي او که غير سيال يې وکړ، نو دوی د نکاح د فسخې غوښتنه کولای شي.

**په نکاح کې د کفاءت د شرط گرځولو دليل**

د کفاءت د شرط کيدلو او مراعات کولو دليل عرف د مېړه او ښځې تر منځ مصلحتونو ته پاملرنه ده، ځکه شريفه ښځه نه غواړي چې له خسيس سړي سره خپل ژوند تېر کړي، عادت ثابته کړې چې که چيرې خاوند د خپلې ماندينې سيال نه وي د هغوی ژوند دوامدراه نه وي، ضروري ده چې د خاوند په لوري کې کفاءت مراعات شي، نه د ښځې په لوري کې او که دا مراعات ونه شي، نو د نکاح عقد به د اولياوو له خوا له فسخې کولو سره مخ شي، تر څو له ځان څخه د شرم زيان ليرې کړي.

**د کفاءت اوصاف**

کفاءت يا د ښځې او مېړه ترمنځ برابر والی په پام کې نيول، د ژوند د نظام او قانون په توگه د اسلامي شريعت يوه ځانگړتيا ده؛ ځکه د واده د دوام او د اړيکو د پياوړتيا لپاره د دين، کلتور، ټولنيز او اقتصادي حالت او دود له پلوه د ښځې او مېړه نژديوالی ډېر مهم او ارزښتمن دی.

**د كفاءت احكام**

۱. كه بالغه او عاقله نجلۍ ځانته غير سيال سړی غوره كړي، نو ولي د نكاح د فسخې حق لري، يعنې قاضي ته به يې د جلا كېدو دعوى وړاندې كړي او قاضي به ددوى تر منځ بيلتون راولي.

۲. او كه يې له غير سيال سړي سره د ولي په اجازه نكاح وكړه بيا نكاح لازمېږي، ځكه واده او نكاح كول د ښځې خپل حق دی، خو اولياء يوازې د كفاءت دنه شتون په صورت كې د اعتراض حق لري، كله چې دوی خپل حق په پخواني رضايت ساقط كړ، نو نكاح لازمه ګڼل كيږي.

۳. كه چيرې زوج خپل نسب خلاف ښكاره كړی و، په داسې حال كې چې د ښځې كف نه و، نو د نكاح د عقد د فسخې حق هم ښځې او هم د هغې ولي ته حاصل دی.

۴- كله چې عاقله او بالغه نجلۍ د خپلې نكاح لپاره وكيل و نيسي او بيا يې دا وكيل غير سيال سړي ته وركړي دا نكاح ددې نجلۍ په اجازې پورې تړلې ده.

**فعاليت**

په اسلام كې ولي كفاءت معتبر ګرځول شوی دی؟ زده كوونكي دې د كفاءت په اهميت، حكمت او اغيز په هكله په تفصيل ځواب وركړي.




۱. كفاءت تعريف كړئ.
۲. د چا كفاءت معتبر ګڼل كيږي؟
۳. دكفاءت د غوښتنې حق د چا دی؟
٤. په نكاح كې دكفاءت د شرط ګرځولو دليل بيان كړئ.
۵. دكفاءت اوصاف بيان كړئ.
٦. كه بالغې او عاقلې نجلۍ غير سيال سړی غوره كړی وي، آيا ولي يې د فسخې حق لري؟
۷. كه د نجلۍ وكيل هغه غير سيال ته په نكاح وركړي، آيا نجلۍ د فسخې حق لري؟



**كورنۍ دنده**

شريعت په كفاءت كې كوم اوصاف غوره ګڼلي، په دې هكله د جومات د ملا امام په مرسته يوه مقاله وليكئ.

# د نکاح محرمات

له محرماتو سره نکاح کول حرام دي او د نکاح د عقـد د صحت لپـاره دا شـرط ده چـې ښځه به نکاح غوښتونکي سړي ته روا وي.

**د محرّماتو تعریف**

**په لغت کې:** محرّمات د محرّم جمعه ده او محرّم، حـرام (منعـه) گرځـول شـوې تـه ویـل کیږي.

**په اصطلاح کې:** هغه ښځینه او نارینـه تـه ویـل کیـږي چـې د قرابـت او خپلـوۍ پـه وجـه ورسره نکاح کول ناروا وي.

**د محرماتو ډولونه**

محرمات په دوه ډوله دي:

۱ – ابدي محرمات.

۲ – موقتي محرمات.

**ابدي محرمات:** ابدي محرمات هغه دي چې د تل لپاره د سړي نکاح ورسره حرامه وي.

**ابدي محرمات په درې ډوله دي**

**لومړی: نسبي محرمات**

نسبي محرمات هغه دي چې د نسبي خپلوۍ له امله په سړي حراميږي او هغه اووه دي:

أ– مورگانې او تر هغوی پورته(دمور مور او د پلار مور) چې د انسان اصول ورته وايي.

ب– لورگانې او تر هغوی ښکته (د لور لـور، د زوی لـور همداسـې ښـکته) چـې د انـسان فروع دي.

ج– د مور او پلار اولاده لکه خویندې او د هغوی اولاد.

د– د نیا او نیکه زامن او لوڼه، لکه الف: ترینده‌ی او ترونه. ب: توږۍ گانې او ماما گان

ه– وریرې او د هغوی اولاد.

ز– خورزې او د هغوی اولاد.

الله تعالی ﷻ فرمایي: ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالاَتُكُمْ وَبَنَاتُ الأَخِ وَبَنَاتُ الأُخْتِ﴾ [النساء: ۲۳] پر تاسې حرامې کړای شوې ستاسې میندې، لوڼې، خویندې، ترینديې، توړی ګانې، وريرې او خورزې".

**دويم: د مصاهرت حرمت**

د مصاهرت حرمت هغه دی چې د خسر والي او زوم والي له امله په سړي حرامېږي او دا محرمات په څلور ډوله دي:

**أ- د ښځې مور:** په مجرد عقد تړلو سره د خپلې ښځې مور او ددې نیاګانې په سړي باندې د تل لپاره حرامېږي او نکاح ورسره نشي کولای. الله تعالي فرمایي: ﴿وَأُمَّهَاتُ نِسَآئِكُمْ﴾ [النساء: ۲۳] {او(پر تاسې حرامې کړای شوې) ستاسې د ښځو میندې}.

**ب- د ښځې لوڼې** (پرکتي): د پرکتیو، د دوی لوڼې او تر هغو ښکته، پدې شرط چې خاوند له ښځې سره کوروالی کړی وي د ابدي محرماتو له ډلې څخه دي، که چیرې یې کوروالی ورسره نه وي کړی یوازې دده په نامه شوې وه اوله عقد وروسته ورڅخه په طلاق یا وفات جلا شوه، بیا ورته روا ده چې ددې ښځې لورګانې او لمسیانې په نکاح کړي.الله تعالی فرمایي: ﴿وَرَبَائِبُكُمُ اللاَّتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ اللاَّتِي دَخَلْتُم بِهِنَّ﴾ [النساء: ۲۳] "او (پر تاسې حرامې کړای شوې ستاسې د ښځو هغه لوڼې چې ستاسې په غیږو کې پالل شوې وي البته د هغو مېرمنو لوڼې چې تاسې ورسره مباشرت او کوروالی کړی وي "

**ج- د زامنو ښځې یا نګیندې:** (د اولادونو او لمسو ښځې) همداسې تر ښکته، برابره خبره ده چې زوی او لمسي له خپلو ښځو سره کوروالی کړی وي او یانه، بلکه په نوم کیدل ورته کافي دي، همدا راز له طلاق څخه یې وروسته هم نشي په نکاح کولای، یعنې یو سړی د خپلې اولادې له ښځو سره په هیڅ صورت نکاح نشي کولای ؛ ځکه چې دا د ابدي محرماتو له ډلې څخه دي. الله تعالی ﷻ فرمایي: ﴿وَحَلاَئِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلاَبِكُم﴾ [النساء: ۲۳] او (پر تاسې حرامې کړای شوې) ستاسې د هغو زامنو مېرمنې چې ستاسې له پښت څخه دي".

**په زنا کولو د مصاهرت حرمت**

په زنا کولو د مصاهرت حرمت واجبیږي، که یو څوك له کومې ښځې سره زنا وکړي، نو دهغې ښځې اصول او فروع یعنې مور، نیا همداسې پورته، لور او د لور لور همداسې

ښکتهورباندې حراميږي او په نکاح يې نه شي اخيستلای، همدا شان همدغه ښځه د زانـي سړي اصولو او فروعو ته هم حرامه ده.

**فعاليت:**
زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي، نسبي او د مـصاهرت د حرمـت پـه ډولونـو دې خبرې وکړي.




١. محرمات تعريف کړئ.
٢. د محرماتو ډولونه په ګوته کړئ.
٣. نسبي محرمات کوم دي؟ په تفصيل يې بيان کړئ.
٤. له نسبي محرماتو سره د نکاح د حرمت حکمت څه دی؟
٥. د مصاهرت حرمت څه ته وايي؟ ډولونه يې بيان کړئ.
٦. آيا په زنا کولو سره د مصاهرت حرمت ثابتيږي؟

# رضاعي محرمات

په مخکيني لوست کې مو د ابدي محرماتو له دريو ډولونو څخه دوه ډوله چې لومړی يې نسبي او دويم يې د مصاهرت و، بيان کړل، اوس غواړو چې دريم ډول يې چې رضاعي محرمات دي، بيان کړو.

**رضاعي محرمات**

رضاعي محرمات هغه دي چې د رضاع (د شودو خوړلو) په سبب په تي خوړونکي باندې حراميږي، نو هغه ښځې چې د نسب او مصاهرت په سبب په سړي ناروا کېږي، هم هغه ښځې د رضاع په سبب هم ورباندې حراميږي.

ځکه شيدې خوړونکی داسې شي لکه د شيدې ورکوونکې نسبي زوی، نو کوم محرمات چې يې په نسبي اولاد حراميږي هم هغه په شيدې خوړونکي هم حرامېږي، الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿وَأُمَّهَاتُكُمُ اللاَّتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُم مِّنَ الرَّضَاعَةِ﴾[النساء: ٢٣] او (پر تاسې حرامې کړای شوې) ستاسې هغه مېندې چې تاسې ته يې شيدې درکړې وي او ستاسې دتي شريکې خويندې "

**په يوه حديث شريف کې** رسول الله ﷺ فرمايي: «يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ»[1].

څه چې په نسب حراميږي هغه په رضاع(تي خوړلو) حراميږي.

**د شيدې ورکوونکې او خوړونکي تر منځ د حرمت د حکم توپير**

د شيدې ورکوونکې خواته ټول خپلوان شي، نو رضاعي مور او نيا همداسې پورته، رضاعي لور همداسې ښکته، رضاعي خور، توړی، ترور، رضاعي ورېرې او خورزې، دا ټول په شيدې خوړونکي حرامې دي.

دا حرمت شيدې خوړونکي او دده اولادونو ته ورشامل دی، خو دده قريبانو او خپلوانو ته بيا دا حرمت نه شامليږي نو د شيدې خوړونکي رضاعي پلار ته دا روا ده چې دده نسبي مور يا خور په نکاح کړي او همدا شان دده نسبي پلار ته دا روا ده چې دده رضاعي مور او يا خور په نکاح کړي، ځکه خپلوي يوازې له ده سره ده. د بېلګې په توګه احمد رضاعي مور لري، د هغه حيثيت په رضاعي کورنۍ کښې داسې دی لکه چې خپل نسبي کورنۍ لري، نو د ده محارم په رضاعي کورنۍ کې د نسبي کورنۍ په څېر دي خو احمد

[1] الراوي: عبدالله بن عباس المحدث: مسلم المصدر: صحيح مسلم الجزء أو الصفحة: ١٤٤٧.

د کورنۍ له خوا رضاعي کورنۍ ته يوازې د ده ښځه او اولادونه محرم ګڼل کېږي نور پاتي کورنۍ يې اجانب دي.

يو فارسي شعر ددې خبرې ښه وضاحت په لنډ ډول داسې کوي:

(از جانب شير ده همه خويش شوند - و از جانب شير خواره زوجان وفروع).

" د شيدې ورکونکې خواته ټول خپلوان شي او د شيدو خوړونکې خواته يوازې زوجان(د رضاعي زوی ښځه يا د رضاعي لور خاوند) او د هغوی اولادونه، لمسيان همداسې ښکته حراميږي"

**هغه شيدې چې حرمت ورباندې ثابتيږي**

دشودو خوړلو په سبب حرمت هغه وخت ثابتيږي چې ماشوم شيدې د تي رودلو په زمانه کې وخوري او د تي رودلو موده تر ديرشو (۳۰) مياشتو ده او د ماشوم عمر چې له ديرشو مياشتو زيات شو په شيدو رودلو يې حرمت نه ثابتيږي.

**لږ او ډيرې شيدې**

د حرمت په ثابتيدلو کې د لږ شيدو او د ډيرو شيدو فرق نشته، نو که ماشوم لږې شيدې وخوري او يا ډيرې حرمت ورباندې ثابتيږي.

**فعاليت:**

دغه لاندې فارسي شعر چې په لوست کې مو ولوست شرحه کړئ:

(از جانب شيرده همه خويش شوند - و از جانب شير خواره زوجان و فروع)




۱. رضاعي محرمات کوم دي؟
۲. د شيدې ورکوونکې او خوړونکې ترمنځ د حرمت د حکم توپير په دقت بيان کړئ.
۳. هغه شيدې چې حرمت ورباندې ثابتيږي، کومې دي؟

# موقتي محرمات

دا هغه ښځې دي چې د موقت وخت لپاره د یوه ټاکلي سبب له امله ورسره نکاح کول ناروا دي او کله چې سبب له منځه ولاړ شي بیا ورسره واده کول جواز لري.

**موقت محرمات په لاندې ډول دي**

**(۱)**_ له ښځې سره د هغې د خور په نکاح کې یو ځای کول حرام دي، الله تعالی ﷻ فرمایي: ﴿وَأَن تَجْمَعُوا۟ بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ﴾ [النساء: ۲۳] او دا هم پر تاسې حرامه ده چې په یوه نکاح کې دوه خویندې یو ځای کړئ.

**(۲)**_ له ښځې سره توړۍ، یا ترور، همدا شان بله داسې ښځه یوځای کول چې یوه ورته نر فرض کړای شي له دویمې سره یې نکاح جواز ونه لري، حرامه ده.

روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: «لاَ يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا وَلاَ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَخَالَتِهَا»[۱] " په نکاح کې د ښځې او د هغې د توړۍ او د ښځې او د هغې د ترور یو ځای کول نه کیږي ".

**(۳)**_ **پنځمه ښځه کول:** سړي ته په اسلام کې دا جواز نه لري چې په یو وخت کې له څلورو ښځو څخه زیاتې په نکاح کړي، نو که یو څوك پنځمه ښځه په نکاح کول وغواړي، تر څو چې یوه طلاقه نه کړي او د هغې عدت تېر نه شي تر هغو د پنځمې د نکاح عقد صحت نه پیدا کوي.

له ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې غیلان بن سلمه الثقفي مسلمان شو او لس ښځې یې درلودې چې هغوی هم مسلمانې شوې، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: څلور وساته او نورې ټولې جلا کړه (طلاقې کړه).[۲]

**له یوې څخه زیاتې ښځې**

الله تعالی ﷻ له یوې څخه زیاتې ښځې رواکړې دي، الله تعالی ﷻ فرمایي:

۱ - صحیح مسلم

۲ - سنن ترمذی.

﴿وَ إِنْ خِفْتُمْ أَلاَّ تُقْسِطُواْ فِي الْيَتَامَى فَانكِحُواْ مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاء مَثْنَى وَثُلاَثَ وَرُبَاعَ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلاَّ تَعْدِلُواْ فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ذَلِكَ أَدْنَى أَلاَّ تَعُولُواْ﴾ [النساء: ۳] که تاسې ویرېږئ چې له یتیمو (نجونو) سره به عدالت ونه شئ کړای، نو کومې (نورې) ښځې چې ستاسې خوښېږي د هغو له دوو دوو، دریو دریو، څلورو څلورو سره نکاح وکړئ، خو که له تاسې سره دا اندېښنه وي چې له هغو سره به عدالت ونه شئ کړای، نو یوه ښځه وکړئ، یا له هغو (وینځو) نه کار واخلئ چې تاسې یې مالکان یاست په دې توگه له بې عدالتۍ نه په ښه شان ژغورل کیدای شئ).

سره له دې چې په عام ډول له یوې ښځې سره واده کیږي او په اسلامي نړۍ کې مسلمانان په یوه واده اکتفا کوي، د متعددو ودونو فیصدي دومره زیاته نه ده، خو د فردي او ټولنیزو اړتیاوو لپاره له یوې څخه زیاتې ښځې که په نکاح اخلئ نو ددوو خبرو رعایت باید په پام کې ولرئ:

**لومړی:** سړی به دا وړتیا لري چې د خپلو ښځو تر منځ مادي او اخلاقي عدالت مراعات کړي، الله تعالیﷻ فرمايي: ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلاَّ تَعْدِلُواْ فَوَاحِدَةً﴾ [النساء: ۳] خو که له تاسې سره دا اندېښنه وي چې له هغو سره به عدالت ونه شئ کړای، نو یوه ښځه وکړئ.

که چیرې له کومې یوې سره د زړه مینه ولرئ هغه باک نه لري، ځکه هغه دده په اختیار کې نه ده، رسول کریمﷺ له عایشې بي بي سره مینه لرله او دعاء به یې کوله: اې الله! ته ما په هغه څه مه نیسه چې زما په واک کې نه دي.

اسلام په ښځو ظلم او د هغو تر منځ عدالت نه کول حرام کړي دي، رسول اللهﷺ فرمايي: څوک چې دوه ښځې ولري او د هغو ترمنځ عدالت نه کوي او یوې خواته یې میلان وي، نو د قیامت په ورځ به یې یو اړخ فلج او له کاره لویدلی وي.[۱]

**دویم:** سړی به د نفقې د برابرولو مالي وس لري، تر څو د نفقې د نه شتون له کبله پر ښځه ظلم ونشي.

**(٤)ـ د بل چا ښځه او له طلاقه او یا مرگه وروسته په عدت کې ښځه:** له هغې ښځې سره نکاح کول حرام دي چې د بل چا په نکاح کې وي، الله تعالیﷻ فرمايي: ﴿وَالْمُحْصَنَاتُ

---

۱ - مسند احمد.

﴿مِنَ النِّسَاء﴾ [النساء: ۲۴] او هغه ښځې هم پر تاسې حرامې دي چې د کوم بل چا په نکاح کې وي.

همدا شان له هغو ښځو سره نکاح جواز نه لري چې هغوی له طلاقه او یا د مېړه له مرګ څخه وروسته د عدت په موده کې وي، خو که چیرې د خاوند له طلاقه وروسته او یا د خاوند له مرګه وروسته عدت یې تېر شو، بیا بل چا ته روا ده چې نکاح ور سره وکړي.

الله تعالي ﷻ فرمايي: ﴿وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلاَثَةَ قُرُوَءٍ وَلاَ يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ﴾ [البقره: ۲۲۸] «کومو ښځو ته چې طلاق ورکړای شوی وي، هغوی دې د دريو حیضونو موده پر انتظار تېره کړي او دا ورته روا نه ده کوم څه چې الله ﷻ د دوی په رحم کې پیدا کړي وي هغه پټ کړي هغوی ته هېڅکله نه ښايي چې داسې وکړي که پر خدای او د آخرت په ورځ ایمان لري».

**له هغو ښځو سره نکاح چې په کوم آسماني دین باور نه لري**

د مسلمان سړي لپاره دا روا نه ده چې له مشرکې او بت پرستې ښځې سره نکاح وکړي، الله ﷻ فرمايي: ﴿وَلاَ تَنكِحُواْ الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ وَلأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ﴾[البقره: ۲۲۸] «تاسې له مشرکو ښځو سره هېڅکله نکاح مه کوئ، ترڅو یې چې ایمان نه وي راوړی، یوه مسلمانه وینځه له مشرکې نه ډېره ښه ده، که څه هم چې ستاسې هغه ډېره خوښه وي».

**له کتابیاتو سره نکاح**

هغه پاک لمنې ښځې چې په آسماني کتاب ایمان لري لکه یهودي او نصراني ښځې نکاح ورسره جواز لري، الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُواْ الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ مُحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَافِحِينَ وَلاَ مُتَّخِذِي أَخْدَانٍ﴾ [المائدة: ٥] «او پاک لمنې ښځې هم ستاسې لپاره حلالې دي، که هغوی له هغو قومونو څخه چې هغو ته له تاسې نه مخکې کتاب ورکړ شوی و، په دې شرط چې تاسې د هغو مهر ورکړئ په نکاح کې د هغوی ساتونکي اوسئ، نه دا چې په آزادۍ شهوت رانۍ لاس پورې کړئ یا په پټه په غلا یاراني وکړئ.»

سره له دې چې له کتابیاتو سره نکاح جواز لري، خو له تنزيهي کراهیت څخه خالي نه ده، او په هغه وخت کې خو تحریمي کراهیت ته رسېږي که همدا کتابي ښځه په داسې

قوم پورې اړه ولري چې له مسلمانانو سره يې جګړه روانه وي، يا له هغې سره واده کول ددې باعث وګرځي چې په کفري وطن کې استوګن شي او اولادونه يې د کافرانو په خويونو اخته شي.

**د مسلمانې ښځې نکاح له کافر سره**

د مسلمانې ښځې نکاح کول له کافر سړي سره په مطلق ډول حرام دي که هغه يهودي، نصراني، ملحد او يا بل کافر وي، الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ﴾ [الممتحنة: ۱۰] {بيا کله چې تاسې ته معلومه شي چې هغوی مومنې دي، نو هغوی بېرته کافرانو ته مه لېږئ، نه هغوی د کافرانو لپاره روا دي او نه کافران د هغو لپاره روا دي}.

**فعاليت**

ښوونکی دې زده کوونکي په دريو ډلو ووېشي، له يوې څخه د زياتو، د کتابياتو، او کافرو ښځو د نکاح په اړوند دې خبرې وکړي.




۱. موقت محرمات کوم دي؟
۲. له يوې ښځې څخه د زياتو ښځو په نکاح کولو کې کومې خبرې ضروري دي؟
۳. په عدت کې د ښځې نکاح څه حکم لري؟
٤. ايا له هغو ښځو سره چې په آسماني دين باور نه لري نکاح جواز لري؟
٥. له کتابياتو سره د نکاح کولو حکم څه دی؟
٦. ايا له کافر سره د مسلمانې ښځې نکاح جواز لري؟

# مُتعه

اسلامي شریعت د انسان د عزت خوندي ساتلو ته ډیره پاملرنه کړې ده، له همدې امله یې صحیحه نکاح چې ارکان او شرطونه یې پوره وي روا ګرځولې او له مؤقتې نکاح څخه چې له زنا سره ورته والی لري منعه کړې ده.

## موقته یا دمُتْعې نکاح

**مُتعه په لغت کې:** اسم مصدر دی چې له تمتع څخه اخیستل شوی او متاع هر هغه شي ته ویل کیږي چې د هغې نه ګټه اخیستله کیږي.

**په اصطلاح کې:** د څه وخت لپاره له ښځې سره واده کولو ته وایي او د نکاح مقاصد په کې مراد نه وي چې هغه اولادونه او د هغوی تربیه ده، بلکې د یوې معلومې مودې لپاره د ګټې اخیستلو او شهوت پوره کولو لپاره وي، هغه داسې چې سړی له ښځې سره د یوې ورځې، یا یوې اونۍ، یا یوې میاشتې او یا یوه کال او یا دې ته ورته وخت لپاره نکاح وتړي.

## د متعې نکاح حکم

د متعې نکاح باطله او حرامه ده، ځکه په یوه حدیث کې حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي: (نبي کریم ﷺ د مُتعې له نکاح څخه منعه کړیده[1]) او منعه کول د حرمت او بطلان مقتضي ده.

د متعې نکاح د اسلام په اول کې د محدود وخت لپاره روا شوې وه، وروسته بیا باطله او د تل لپاره حرامه وګرځیده، ځکه دا له زنا سره ورته والی لري چې بې له شهوت پوره کولو بل مقصد ورڅخه نه اخیستل کیږي، نه د کورنۍ ثبات او ټینګښت، نه د اولادونو راوړل او نه دهغوی ساتنه او دا یوازې د دوامدارې نکاح په صورت کې په لاس راتلای شي.

## د موقتې نکاح او متعې توپیر

د موقتې نکاح او متعې تر منځ توپیر یوازې په الفاظو کې دی، که یې د متعې لفظ استعمال کړ متعه ده او که یې د معین وخت لپاره د تزویج یا نکاح لفظ وکاراوه موقته ده.

---

[1] (رواه البخاري)

## د شِغار (بدل) نکاح

### د شغار تعریف

**په لغت کې:** شغار د شَاغَرَ مصدر دی او خالي والي ته وايي، د شغار نکاح هم لـه عـوض څخه چې مهر دی خالي وي.

**او شرعا:** د شغار نکاح هغه ده چې ولي خپله لور یا خور بل چا ته په دې شرط په نکاح ورکړي چې هغه خپله لور یا خور ده ته د هغې په بدل کې په نکـاح ورکـړي بـې لـه دې چې مهر یاد کړي، یعنې چې یوه نجلۍ د بلې مهر وګرځوي.

### ددې نکاح حکم

په حنفي مذهب کې د غه ډول نکاح ترل له کراهیت سره سره صحت لـري او مهـر مثـل وربانديې لازمیږي.

په حدیث شریف کې چې له شغار څخه منعه شوې، له هغې منعې څخه مطلب تحریمـي کراهیت دی، ځکه چې مهر پکې نـه دی ایـښودل شـوی او پـه کراهیـت بانـدې فساد نـه مرتب کیږي.

**فعالیت:**

زده کوونکې دې د خپلو سیمو په هکله معلومات وړاندې کړي چې هلتـه د شـغار نکـاح رواج ده که نه او که وي کیفیت یې څه دی؟




۱. د متعې نکاح تعریف کړئ.
۲. د متعې نکاح حکم څه دی؟
۳. د مخطوبې د نه غوښتلو حکمت څه دی؟
٤. د شغار نکاح تعریف او حکم یې بیان کړئ.




د مُتعې نکاح د حرمت په هکله د استاد او علماوو په مرسته یوه مدللـــــه مقاله ولیکئ.

## مهر

کله چې يوه ښځه د چا په نکاح کې راځي، نو د نکاح د عقد له کيدلو سره سم پـه مېړه مهر لازمېږي چې خپلې ښځې ته به يې ورکوي.

**دمهر تعريف**

مهر هغه مال ته ويل کيږي چې ښځې ته د هغه ورکړه د نکاح د عقد په اساس پـه سړي واجب گرځي.

**د مهر مشروعيت**

مهر په قرآن کريم او سنتو سره ثابت دی.

**۱- قرآن کريم:** الله ﷻ فرمايي: ﴿وَآتُواْ النَّسَاء صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً﴾ [النساء: ٤] «ښـځو تـه د هغـو مهرونه په خوښۍ ورکړئ»

**۲- حديث:** نبي اکرمﷺ يو سړي ته چې د نکاح اراده يې درلوده وفرمايل: «الْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ»[۱] "مهر ورکړه ولو که يوه اوسپنيزه گوته هم وي". معنا دا چې د مهر ورکړه حتمي کار دی.

**په نکاح کې د مهر د وجوب حکمت**

له مهر څخه مقصد د نکاح د عقد د اهميت او غوره والي، د ښځې شخصيت تـه د عـزت او احترام او د نارينه لخوا هغې ته د واده کولو له امله د حسن نيـت او صـداقت ښـکاره کـول دي، د نکاح د مصلحتونو او مقاصدو د لاس ته راوړلو لپـاره د ښـې زمينـې برابـرول دي، دا مادي تړاو ددوی تر منځ معنوي تړاو ټينگوي.

**مهر د ښځې خپل حق دی**

له ذکر شويو خبرو څخه دا معلومه شوه چې مهر د ښځې خپل حق دی، څه ډول تـصرف چې پکې وغواړي کولای يې شي، د هغې ولي ته شرعاً جواز نه لـري چـې هغـه ددې لـه

۱ - صحيح البخاري

خوښې پرته ورڅخه واخلي، لکه چې په دې زمانه کې يې پلرونه، اولياء او خپلوان مهر د ځان حق بولي او د هغې حق تلف کوي، الله تعالی ﷻ مېړونو ته په خطاب کې فرمايي: ﴿وَآتُواْ النَّسَاء صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَّرِيئًا﴾ [النساء: ٤] «او د ښځو مهر په ښه زړه (فرض ګڼلی) ورکړئ، البته که هغوی يې په خپله خوښه يو څه تاسې ته وبخښي، نو تاسې هغه په خوند سره خوړلای شئ چې حلا ل او بې ضرره دی».

**د مهر حکم**

د خاوند له لوري ښځې ته مهر ورکول واجب دي.

په نکاح کې مهر نه رکن او نه هم شرط دی، که چا د مهر له يادولو پرته نکاح وکړه نکاح سمه ده او مهر مثل ورکول واجبيږي.

**د مهر اندازه**

د مهر کمه اندازه لس شرعي درهمه (چې ۲۹.۷۵ ګرامه سپين زر کيږي) ده او ډيره يې حد نلري، په څومره چې سره راضي شول همغومره خپلی ښځې ته ورکولای شي.

يو شرعي درهم ۲،۹۷۵ ګرامه سره مساوي دي چې ۱۰ درهم په ۲،۹۷۵ ضرب کړای شي ۲۹،۷۵ ګرامه وزن کيږي دغه مجموعي وزن د ورځني قيمت پر اساس معلوميږي.

**څه شی مهر واقع کيدای شي ؟**

هر ارزښت لرونکی معلوم شی چې سپارل يې د سړي په واك کې وي د ښځې مهر کيدای شي، که هغه سره زر، سپين زر، بانك نوټونه او دې ته ورته نور شيان وي، ښځې ته يې په مهر کې ورکولای شي.

**کله مهر کامل لازميږي؟**

کله چې مهر کيښودل شي، نو په دوو صورتونو کې هغه کامل لازميږي:

۱. يو چې سړی له خپلې ښځې سره يوځای شي.

۲.او بل چې سړی مړ شي.

**د مهر ډولونه**

د فقهاوو کرامو په نظر مهر په دوه ډوله دی:

۱- مهر مسمی.

۲- مهر مثل.

۱- مسمی مهر: هغه مهر ته وايي چې په عقد او يا له عقد څخه وروسته د ښځې او خاوند په خوښه وټاکل شي.

۲- مهر مثل: هغه مهر دی چې له دې څخه مخکې د دې واده شوې خور يا تروړې اخيستی وي، يعنی د پلار په خپلوانو کې چې د دې هم عصروسيالو څومره مهر اخيستی يا ورته ټاکل شوی وي مهر مثل بلل کيږي.

**د مهر مثل د وجوب حالات**

په لاندې حالاتو کې مهر مثل واجبيږي.

۱- کله چې په نکاح کې د مهر ذکر نه وي شوی.

۲- کله چې داسې شی مهر ټاکل شوی وي چې هغه شرعاً مال نه وي لکه شراب.

۳- کله چې ښځې او خاوند په عدم مهر باندې اتفاق کړی وي.

**د لږ مهر مستحب والی**

مخکې مو وويل د مهر زياته اندازه حد نه لري، په څومره چې د جانبينو موافقه راغله هومره ورکولای شي، دا يو مادي رمز دی چې د ښځې د عزت لپاره ورکول کيږي، همدا شان د ښځو تر منځ هم د صفاتو او درجاتو له مخې توپيرونه وي، خو اسراف کول جواز نه لري او دا مستحب ده چې کم مهر کېښودل شي، رسول الله ﷺ په مهر کې آساني کول د برکت سبب بللی دی فرمايي: «خَيْرُ الصَّدَاقِ أَيْسَرُهُ»[۱] "ښه مهر هغه دی چې کم او آسانه وي". او فرمايي: «أعظم النساء بركة أيسرهن مؤنة»[۲] "هغه ښځې ډيرې برکتي وي چې د واده لګښت يې کم وي.

عام مصلحت هم د مهر د کم والي غوښتنه کوي، په هغه کې هم زوجينو او هم ټولنې ته ډيرې ښيګڼې دي. ډيرې داسې ښځې شته چې د مهر د زيات والي په سبب په کورونو کې ناستې دي او ډير داسې ځوانان شته چې له همدې امله واده نه شي کولای او د ښځې او نر د واده په مخ کې دغه ستونزې کله کله ددې لامل ګرځي چې منکراتو او ناروا کارونو ته مخه کړي.

---

۱ - سنن بيهقی.

۲ - مسند احمد.

د شریعت روح دا غوښتنه کوي چې باید واده آسانه شي او ټول هغه موانع لکه د مهر زیاتوالی له منځه ولاړ شي، ترڅو ځوانانو ته د واده کولو لار برابره شي.

**فعالیت**

ښوونکی دې زده کوونکې په دریو ډلو وویشي، څو په خپل منځ کې د مهر د مشروعیت، حکمت، مهر د ښځې حق دی که د ولي او د مهر د ډولونو او د وجوب په حالاتو سره ځانونه پوه کړي.




۱. مهرڅه ته وایي؟
۲. د مهر د مشروعیت دلیل څه دی؟
۳. په نکاح کې د مهر د وجوب حکمت څه دی؟
٤. آیا مهر د ښځې خپل حق دی.؟
۵. د مهر حکم څه دی؟
٦. د مهر اندازه باید څومره وي؟
۷. څه شی مهر واقع کیدای شي؟
۸. د مهر ډولونه کوم دي؟
۹. مهر مثل کله واجبیږي؟

# ولیمه

لکه چې په مخکې درسونو کې مو ولوستل اسلامي شریعت نکاح رواکړې ده، نو د هغې د اعلانولو لپاره یې ولیمه سنت کړې، په دې لوست کې په ولیمه غږېږو.

### د ولیمې تعریف

**په لغت کې:** ولیمه له ولمه څخه اخیستل شوې چې د یوه شي یو ځای کیدلو او بشپړیدلو ته وایي.

**په شریعت کې:** هغو خوړو ته وایي چې د واده لپاره برابر شي.

### د نکاح د ولیمې حکمت

د ولیمې د مشروعیت حکمت دا دی چې له یوه پلوه دوستان په خوښۍ کې راګډ او د الله ﷻ ددې ستر نعمت شکر اداء شي او له بل پلوه ټول خلک په نکاح خبر شي، تر څو د روا نکاح او ناروا او پټو یارانو تر منځ بیلتون راشي.

### د ولیمې حکم

ولیمه سنت مؤکد ده، ځکه رسول الله ﷺ عبد الرحمن بن عوف ته چې کله یې واده وکړ وفرمایل: «أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ»[1] "د واده ډوډۍ ورکړه ولو که یو پسه وي هم".

### د ولیمې دعوت منل

د ولیمې دعوت منل سنت دي، مسلمان ته پکار دي چې ګډون پکې وکړي، په خپل ګډون سره خپل مسلمان ورور ته خوښي وروبښي او که ورنه شي ګنهګاریږي، په یوه حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایي: «وَمَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ»[2] " څوک چې بلنه ونه مني، نو د الله او د هغه د رسول نا فرماني یې وکړه.

«إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى وَلِيمَةِ عُرْسٍ فَلْيُجِبْ»[3] "څوک چې د واده خوړې ته وبلل شي، نو پکار ده چې هغه بلنه ومني او ګډون دې پکې وکړي".

---

۱ - صحیح البخاری.

۲ - صحیح مسلم.

۳ - صحیح مسلم.

**هغه ولیمه چې منکرات پکې وي**

که د ولیمې په مجلس کې منکرات او ناروا کارونه (لکه ناروا سازونه، ګډا او نڅاوې ترسره کیدل) وي بیا د دعوت قبلول پکار نه دي، ځکه د دعوت قبلول او په کې ګډون کول پداسې حال کې سنت دي چې په هغې کې منکرات نه وي.

که چیرې له منکراتو او ناروا کارونو څخه خبر نه وي او ګډون پکې وکړ، نو که یې د هغو مخه نیولای شوای مخه دې ونیسي او ګډون دې وکړي او که یې مخه نشوای نیولای بیا دې په دسترخوان ورسره نه کیني.

**دواده او ولیمې په وخت کې باید دا لاندې ځینې آداب رعایت شي:**

۱. له اسراف څخه دې ډډه وشي، ځکه مال د الله تعالی نعمت دی باید په مناسب ځای کې ولګول شي، د تفاخر، ریا او لویي ښکاره کولو لپاره د مال لګول د ګناه لامل جوړیږي.

۲. په واده کې د نامحرمو نارینه او ښځینه وو ترمنځ اختلاط او ګډ وډ کیدل ناروا دي، اسلامي حجاب ته پاملرنه په هر وخت کې لازمه ده، که پاملرنه ونشي، کیدای شي چې ډول ډول فسادونه رامنځ ته شي.

۳. واده د خوښۍ ځای دی، خو دا خوښي باید په ناروا چارو سره ونه لمانځل شي.

۴. ولیمې ته که مالداره خلك غوښتل کیږي، باك نه لري، خو فقیران هم باید له خوراك څخه بې برخې نه شي. په یوه حدیث کې چې له ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی رسول اللهﷺ فرمایي

«شَرُّ الطَّعَامِ طَعَامُ الْوَلِيمَةِ يُدْعَى لَهَا الأَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ الْفُقَرَاءُ»[1] "په خوړو کې بد خواړه د هغې ولیمې دي چې بډای او مالداره خلك ورته غوښتل کیږي او فقیران پریښودل کیږي".

۵. په مسجد کې د نکاح تړل سنت دي په دې هکله رسول الله ﷺ فرمایي: «أَعْلِنُوا هَذَا النِّكَاحَ وَاجْعَلُوهُ فِي الْمَسَاجِدِ»[2]

تاسو دغه نکاح په ښکاره ډول او په مساجدو کې تر سره کړئ.

---

۱ - صحیح البخاري

۲ - السنن الکبری للبیهقي.

**فعالیت**

زده کوونکي دي په خپل منځ کې وڅېړي چې ددوی په سیمو کې دودیزه ولیمه څومره له شریعت سره برابره ده؟




١. ولیمه تعریف کړئ.
٢. د نکاح د ولیمې حکمت بیان کړئ.
٣. د ولیمې حکم څه دی؟
٤. آیا د ولیمې دعوت منل پکار دي او که وي ولې؟
٥. آیا هغې ولیمې ته چې منکرات پکې وي ورتګ پکار دی؟
٦. د ولېمې په وخت کې کوم آداب پکار دي؟



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د ودونو د هغه دودونو په هکله چې د شریعت سره مخالف دي، یوه مقاله ولیکي چې د پنځلسو کرښو څخه کمه نه وي.

# د ښځې او خاوند حقوق

اسلامي شريعت د واده په ترسره کيدلو د ښځې او د هغې د خاوند ترمنځ ځينې حقوق او واجبات ټاکلي دي چې د هغو په پام کې نيول لازمي دي چې په دې لوست کې وړانـدې کيږي.

**د ښځې حقوق په خاوند باندې**

ښځه په خاوند باندې دا لاندې حقوق لري:

۱- مهر ورکول: کله چې د نکاح عقد تر سره شو په خاوند باندې مهر لازمېږي، الله تعالیﷻ فرمايي: ﴿وَآتُواْ النَّسَاء صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً﴾ [النساء: ۴] "او د ښځو مهر په ښه زړه (فرض ګڼلی) ورکړئ".

۲- نفقه: چې کله ښځه د سړي په نکاح کې راشي، نو په خاوند دا حق لري چې د هغې نفقه برابره کړي. نفقه خوراک، جامې او د اوسيدو ځای ته وايي، الله تعالیﷻ فرمايي: ﴿أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ﴾ [الطلاق: ٦] "هغو ته (دعدت په زمانه کې) په هماغه ځای کې استوګنه ورکړئ چيرته چې تاسې اوسيږئ، هر راز ځای چې تاسې ته ميسر وي او د هغو د تنګولو لپاره هغوی مه ځوروئ، نو چې له طلاقه وروسته په عدت کې وربانـدې نفقه لازمه ده، د نکاح په حالت کې په طريقه اولی وربانـدې لازمه ده، ځکه ښځه د خاوند د اړتياوو لپاره خپل ژوند ځانګړی کړی دی، نو نفقه يې هم وربانـدې لازميږي.

الله تعالی فرمايي: ﴿لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا﴾ [الطلاق: ۷] «شتمن دې لـه خپلې شتمنۍ سره سمه نفقه ورکړي او چاته چې روزي کمه ورکړه شوې وي هغه دې له هماغه مال څخه لګښت وکړي چې الله ﷻ هغه ته ورکړی دی، الله ﷻ چې چاته څومره څه ورکړي دي له هغې نه په زياتو هغه نه مکلفوي، ليرې نده چې الله له تنګلاسۍ نه وروسته پراخي هم ورپه برخه کړي».

او د نفقې اندازه د کفايت او د خاوند د مالي قدرت او توان مطابق ده چې اسراف پکې نشته.

**د هغې ښځې نفقه چې کار کوي**

اسلام ښځه په دې نه ده مکلفه کړې چې کار وکړي، ځکه هغه د نفقې په پیدا کولو مکلفه نه ده، بلکې د هغې نفقه په بل چا ده، که لور وي پلار یې په نفقه مکلف دی، که خور وي ورور یې په نفقه مکلف دی چې وس یې ولري، که مور وي، نو اولادونه یې په نفقه مکلف دي چې د نفقې وس ولري او که ښځه وي نو خاوند یې په نفقه مکلف دی، خو سره له دې هم اسلام ښځې ته کار کول روا کړي دي، **خو په لاندې شرطونو مقید:**

**أ-** که واده شوې ښځه وي د مېړه لخوا به ورته د کار کولو اجازه شوې وي.

**ب-** له پردیو نارینه وو سره به یې اختلاط او خلوت نه راځي.

**ج-** کار به د ښځیتوب له طبیعت سره برابر وي، لکه خیاطي، تعلیم، ډاکتري او دې ته ورته، دولت او ټولنه مکلف ده څو ښځې په شاقه کارونو ونه ګماري.

نو داسې کارونه ورته جواز نه لري چې هغه د سړیو له سخت طبیعت سره مناسب وي، تر څو یې له هغو سره مشابهت را نشي.

او هغه مال چې ښځه یې پیدا کوي هغه د هغې مال دی، یوازې همدا یې د تصرف حق لري، مېړه او نور حق نه لري چې هغه ددې له رضا پرته یې ورڅخه واخلي.

**۳- احسان او په نیکۍ سره ژوند کول:** ښځه له سړي سره د الله تعالی امانت دی، دده په سترګو دده کورته راغلې ده، نو په خاوند واجب ده چې له خپلې ښځې سره ښه سلوک او ښه چلند وکړي، ترڅو په محبت او نیکمرغۍ سره ګډ ژوند تېر کړي، الله تعالیﷻ فرمایي: ﴿وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَى أَن تَكْرَهُواْ شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا﴾ [النساء: ١٩]

«له هغو سره په ښه چلند ژوند تېر کړئ که ستاسې هغوی نه خوښیږي، نو کېدای شي چې ستاسې به یو شی نه خوښیږي، خو اللهﷻ به په هغه کې ډېرې ښېګڼې ایښې وي».

په یوه حدیث شریف کې رسول اللهﷺ فرمایي:

«أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا، وَخَيْرُكُمْ خَيْرُكُمْ لأَهْلِهِ»[1] "د کامل ایمان څښتن هغه دی چې اخلاق یې ښه وي او ښه تاسو کې هغه دی چې له خپل اهل سره ښه وي".

---

١ - متفق علیه

**د حسن معاشرت ځینې موارد په لاندې ډول دي:**

• سړی دې د ښځې په خطا ګانو باندې صبر کوي، په حدیث کې راځي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: «لاَ يَفْرَكْ مُؤْمِنٌ مُؤْمِنَةً إِنْ كَرِهَ مِنْهَا خُلُقًا رَضِىَ مِنْهَا آخَرَ»[1] "مؤمن سړی دې له خپلې مؤمنې ښځې څخه بد نه وړي، کینه دې نه ورسره کوي، که یې دهغې کوم خوی خوښ نه وي بل به یې ورڅخه خوښ شي".

• د ښځې په نفقې کې دې وسعت کوي او د سوغاتونو په ورانـدي کولو دې یې کله کله نازوي، په حدیث کې راځي چې سوغات د زړه کینه له منځه وړي.

• له خپلې ښځې سره دې خوش طبعي او خوش کلامي کوي، د احادیثو له مخې دا ثابته ده چې رسول الله ﷺ به له خپلو مېرمنو مطهراتو سره خوش طبعي کوله.

• خپلې ښځې ته ددیني امورو وربښودل، ترڅو ښځې له ضروري مسایلو څخه خبرې شي او د هغو په رڼا کې د ژوند چارې په شرعي توګه پر مخ بوځي، الله تعالی ﷻ فرمایي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾ [التحريم: ٦]

"اې مؤمنانو! خپل ځانونه او خپل اولاد او کورنۍ له هغه اور نه وژغورئ چې د هغه د سون مواد به انسانان او تیږې وي".

• د کور په کارونو کې دې ورسره مرسته کوي، له عایشې رضی الله عنها څخه روایت راغلی چې نبي کریم ﷺ به دکور په کارونو کې ورسره مرسته کوله.[2]

• د شریعت د لارښوونو مطابق د ښځو تر منځ عدالت کول، که یې له یوې څخه زیاتې ښځې درلودې.

که سړی موجه عذر ونه لري، نو تر ځلور میاشتې زیات دې له خپلې ښځې څخه نه جلا کیږي، حضرت عمر رضي الله عنه یوه شپه په مدینه منوره کې د حالاتو دڅارنې لپاره ګرځیده، چې دیوې ښځې غږ یې واورید، د کومې چې مېړه جهاد ته تللی و، ښځې یې د مېړه د فراق له کبله شعرونه ویل او شکایت یې کاوه.

نو حضرت عمر رضی الله عنه له خپلې لور بي بي حفصې رضی الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې یوه ښځه څومره صبر کولای شي؟ هغې مبارکې ورته وویل: ځلور میاشتې، نو حضرت عمر رضی الله عنه خپلو لښکرو ته امر وکړ چې له ځلورو میاشتو څخه زیات دې له کوره نه لېرې کیږي او که تر ځلورو میاشتو زیاته موده مضره نه وای، نو الله تعالی به په ایلاء کې د ښځې او خاوند تر منځ جلا والی روا نه ګرځاوه.

---

١ - صحيح مسلم.

٢ - صحيح البخاري.

د امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله په وړاندې په څلورو میاشتو کې باید سړی کور والاته راشي. دا راتګ هلته لازم دی چې په سفر کې عذر ونه لري، نو که عذر ولري لکه دعلم زده کړه، جهاد، فرضي حج او یا د رزق پیدا کول، نو بیاپې راتګ لازمي نه دی.

**فعالیت**

زده کوونکي دې دا واضح کړي چې ددوی په سیمو کې د ښځو خاوندان له خپلو ښځو سره تر کومې کچې حسن معاشرت مراعاتوي؟




۱. لاندې حقوق چې ښځه یې په خاوند لري په تفصیل بیان کړئ:

أ- ښځې ته مهر ورکول.

ب-ښځې ته نفقه برابرول.

ت-له ښځې سره احسان او نیکي کول.

۲- نفقه برابرول د سړي مکلفیت دی، خو که ښځه کار کول وغواړي کولای یې شي که څنګه؟

۳- که ښځه څه وګټي خاوند یې له نفقې خلاصیدای شي؟

۴- په حسن معاشرت کې کومې خبرې شاملیږي؟



**کورنۍ دنده**

د ښځې د حقوقو په هکله یوه مقاله ولیکئ.

# د خاوند حقوق په ښځې باندې

**خاوند په خپلې ښځې باندې دا لاندې حقونه لري**

١ – **د خاوند تابعداري:** اسلام په ښځې باندې دمېره اطاعت په هغو چارو کې چې شریعت رواکړي او ګناه په کې نه وي واجب ګرځولی دی. ځکه کورنی د انساني ټولنې یوه برخه ده او د وګړو مجموعه چې په هره سطحه وي، لکه ښوونځی، دفتر، کارخانه، شرکت او حکومت یو مشر او سرپرست ته اړتیا لري، نو سړی چې له یوه پلوه له جسمي او ذهني پیاوړتیا څخه برخمن دی او له بل لوري د ژوند په عملي ډګر کې تل په تمرین او تجربو کې قرار لري، د الله تعالی له لوري د کورنۍ مشر ټاکل شوی. همدا راز نارینه د کورنی تمویل کوونکی دی. د ټولو د نفقې بار دده په اوږو پروت دی، ځکه باید ښځه او اولادونه د هغه اطاعت وکړي. الله تعالیﷻ فرمايي: ﴿الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ﴾ [النساء: ٣٤ ] «نارینه پر ښځو واکمن، اداره چیان دي، له دې امله چې اللهﷻ د هغو ځینو (نارینه وو) ته پر ځینو نورو (ښځو) لوړتیا وربښلې ده او له دې کبله چې نارینه خپل مالونه لګوي».

په یوه حدیث کې رسول الله ﷺ فرمايي: «إِذَا صَلَّتْ الْمَرْأَةُ خَمْسَهَا وَصَامَتْ شَهْرَهَا وَحَفِظَتْ فَرْجَهَا وَأَطَاعَتْ زَوْجَهَا قِيلَ لَهَا ادْخُلِي الْجَنَّةَ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شِئْتِ»[١]

"کومه ښځه چې خپل پنځه لمونځونه په خپل وخت اداء کړي، د روژې د میاشتې فرض روژه ونیسي، خپل د شرم ځای وساتي (له زنا څخه ځان وژغوري) او د خپل خاوند اطاعت وکړي، نو دې ته به وویل شي: له هرې دروازې د جنت چې غواړې جنت ته ورداخله شه".

په یوه بل حدیث کې حضرت عایشې رضی الله عنها له رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وکړه چې په ښځو باندې تر ټولو زیات حق کوم خلک لري؟ دوی ﷺ وفرمایل: دهغې مېړه، بیایې پوښتنه وکړه: کوم خلک په نارینه ډیر حقدار دي، ویې فرمایل: د هغه مور.[٢]

---

١ – مسند أحمد.

٢ – السنن الكبرى للنسائي – (٨ / ٢٥٤)– فتح الباري – ابن حجر – (١٠ / ٤٠٢).

**۲- په کورکې پاتې کېدل او بې ضرورته د خاوند له اجازې پرته له کور څخه نه وتل:**

خاوند په ښځې باندې دا حق لري چې دده له اجازې پرته له کور څخه بهر ولاړه نه شي، تر څو هغه دکور کار او د اولادونو تربیې ته فارغه او په فتنو کې له لویدلو څخه محفوظه وي، الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى﴾ "په خپلو کورونو کې مېشتې اوسئ او د تېرو جاهلي دورو غونډې سینګار کړې بې ستره مه ګرځئ".

د سرپرستۍ دا معنا نه لري چې دوی به استبداد کوي، بلکې په ګډو چارو کې به مشوره کیږي، د هر نظر خاوند به په کور کې پوښتل کیږي، له تصمیم نیولو وروسته به ټول د کور د مشر اطاعت کوي.

**۳- د خاوند د عزت، کور، مال او اولادونو حفاظت او پالنه**

خاوند په خپلې مېرمنې باندې دا حق لري چې دده د کور، مال او اولادونو ساتنه او پالنه وکړي، نبي کریم ﷺ فرمايي: (ښځه د خاوند د کور او اولادونو پالونکې او مسؤوله ده)[1]

او الله تعالی ﷻ د صالحو ښځو په هکله فرمايي: ﴿فَالصَّالِحَاتُ قَانِتَاتٌ حَافِظَاتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللَّهُ﴾ [النساء: ٣٤] "نو کومې ښځې چې صالحې دي هغوی د فرمان منونې خوی لري او د نارینه وو په غیاب کې د الله ﷻ تر ساتنې او څارنې لاندې د هغو د حقوقو ساتنه کوي".

په یوه حدیث کې رسول الله ﷺ فرمايي: «المرأة الصالحة، إذا نظر إليها سرَّته، وإذا أمرها أطاعته، وإذا غاب عنها حفظتْه»[2] "نیکه ښځه هغه ده چې کله (یې خاوند) ورته وګوري خوښ یې کړي چې امر ورته وکړي ویې مني او چې ورڅخه پناه شي، نو (په هر څه کې) دده ساتنه کوي".

په ښځه د دیانت له مخې دا لازمه ده چې په ځان اعتماد ولري، د کور کار په خپله وکړي او د دې کوښښ وکړي چې خادمه ځان ته ونه نیسي، ځکه په کور کې ددې له خاوند او اولادونو سره د خادمې یوځای اوسېدل کله کله د مصیبتونو سبب ګرځي، رسول کریم ﷺ د خپلې لور فاطمې بي بي او د هغې دخاوند حضرت علي کرم الله وجهه

---

١ - صحيح مسلم.

٢ - سنن أبی داود.

تر منځ دکار وېش داسې وکړ چې فاطمې رضی الله عنها ته يې وفرمايل: ته به د کور دننه کار او حضرت علي کرم الله وجهه به دکور د باندې کارونه کوي.[1]

**٤- د سړي لپاره زينت کول:** د مېړه په ښځه دا حق دی چې ښځه يې، په ښايسته او ښه بڼه چې دده د خوښۍ سبب شي ورته ښکاره شي، تر څو د دوی ترمنځ مينه پيدا شي.

رسول کريم ﷺ فرمايي: «الدُّنْيَا مَتَاع، وخَيْرُ مَتَاعِهَا المرْأَةُ الصَّالحةُ، إنْ نَظَرَ إلَيْها سَرَّتْهُ، وإنْ أَمَرَهَا أَطَاعَتْه، وإنْ غَابَ عَنْها حَفِظَتْه فِي نَفْسهَا وَمَالِهِ»[2]. "دنيا متاع(ناچيزه شی) ده چې ګټه ورڅخه اخيستل کيږي او د دنيا ښه متاع او ښه شی صالحه او نيکه ښځه ده چې سړی ورته وګوري خوشحاله شي او چې ورته امر وکړي، نو اطاعت يې کوي او چې کله ورڅخه چيرته ولاړ شي، نو د خپل ځان او دده د مال ساتنه کوي".

## د ښځې او خاوند ګډ حقوق

**١- دواړه به له يو بل** سره په نيکۍ کې ژوند کوي، يعنې ښه او خوښ ژوند به تېروي، الله ﷻ فرمايي: ﴿وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾ [النساء: ١٩]

**ژباړه:** له هغو سره په ښه چلند ژوند تېر کړئ.

او فرمايي: ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾ [البقرة: ٢٢٨] "د ښځو لپاره هم په معروفه توګه هماغسې حقوق دي لکه څنګه چې د نارينه وو پر هغو حقوق دي".

**٢- چې څه شرعي مانع** لکه حيض، نفاس او مرض نه وي د بشري طبيعت د غوښتنې مطابق له يو بل څخه مشروع خوند او ګټه اخيستل.

**٣- د کور دننه کارونه کول،** د ماشومانو پالل، يو له بل سره مرسته کول او يو بل ته په نيکۍ او تقوی نصيحت کول، الله ﷻ فرمايي: ﴿وَتَعَاوَنُواْ عَلَى الْبرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ [المائدة: ٢]

ژباړه: کوم کارونه چې د نيکۍ او خدای پالنې دي په هغو کې له ټولو سره مرسته وکړئ او کوم کارونه چې د ګناه او تېري وي په هغو کې د چا ملاتړ مه کوئ.

**٤- د وراثت حق:** زوجينو ته شرعاً د وراثت حق ثابت دی، کله چې يو له دوی څخه مړ شي بل ورڅخه ميراث وړي.

---

١ - مشكاة المصابيح.

٢ - سنن ابن ماجه.

**فعالیت**

زده‌کوونکي دې په دريو ډلو وويشل شي او په خپلو منځونو کې دې په لاندې موضوعاتو بحث وکړي:

١. په ښځه تر کومه حده د خاوند تابعداري لازمه ده او دليل يې څه دی؟
٢. په حديث کې د نيکې ښځې صفت څه ښودل شوی دی؟
٣. د ښځې او خاوند ګډ حقوق کوم دي؟




١.هغه کومې چارې دي چې ښځه به پکې د خپل خاوند اطاعت کوي؟
٢.آيا ښځه پرته له اړتيا او د خاوند له اجازې پرته له کوره د باندې وتلای شي؟
٣.آيا خاوند په ښځې دا حق لري چې د هغه دکور، مال او اولادونو ساتنه او پالنه وکړي؟
٤.آيا خاوند په ښځې دا حق لري چې د هغه لپاره زينت وکړي؟
٥.د ښځې او خاوند ګډ حقوق کوم دي؟



**کورنۍ دنده**

د خاوند د حقوقو په هکله يوه مقاله له دلايلو سره وليکئ.

# حجاب

اسلام د فطرت دين دى او په خپلو احکامو او لارښوونو کې يې د انسان جسمي او روحي سلامتيا ته پاملرنه کړې، جامې او پرده يو له هغو موضوعاتو څخه ده چې اسلامي شريعت ورته پام اړولی. اسلامي شريعت نارينه او ښځينه مسلمانانو ته په ټولو حالتونو کې په ځانګړي ډول بهر ته د وتلو او عامو ځايونو ته د ورتګ په وخت کې په پردې کولو او د حياء په ساتلو امر کړی.

لکه څنګه چې نارينه نشي کولای د عورت د پټولو پرته يا هم د حياء او عفت څخه مخالف په کاليو په عامو ځايونو کې ښکاره شي، ښځې هم مکلفې دي چې له کور څخه د وتلو، په عامو ځايونو کې د ښکاره کېدو او د نامحرمو خلکو سره د مخامخ کېدو په مهال شرعي حجاب او پرده مراعت کړي.

**دحجاب تعريف**

**حجاب په لغت کې:** ستر او پټوالي ته وايي.

**په شريعت کې:** دې ته وايي چې ښځه خپل عورت پټ کړي، د خپل نظر حفاظت وکړي، له نارينه وو سره له بې ځايه اختلاط او له پرديو سره له خلوت څخه ځان وساتي.

**د حجاب حکم**

قران کريم او نبوي سنت د حجاب په هکله ځانګړې لارښوونې لري: الله تعالى فرمايي:

﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاء بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاء بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُوْلِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاء وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [النور: ٣١]

" او اې پيغمبره! مؤمنو ښځو ته هم ووايه چې خپل نظرونه ښکته ساتي او د خپلو شرمځايونو ساتنه کوي او خپل ښايست او سينګار دې نه ښکاره کوي، مګر هغه چې ښکاره وي (مخ او دلاسونو او پښو پنجې) او پر خپلو سينو دې خپل پړوني واچوي او خپل سينګار دې نه ښکاره کوي هېچاته، خو خپلو مېړونو ته، پلرونو ته، دمېړونو پلرونو ته، زامنو ته، دمېړونو زامنو

(بنزيانو) ته، ورونږو ته، ورېرونو ته، خوريونو ته، خپلو اصيلو ښځو ته، خپلو مرييانو تـه، خپـل هغه لاس لاندې نارينه وو ته چې شهوت والا نه وي او هغو ماشومانو ته چې لاتر اوسه پورې د ښځو له پټو خبرو سره آشنا شوي نه وي او هغوی دې خپلې پښې دومره په زوره نـه وهـي چې دهغوی پټ کړی سينګار خلکو ته څرګند شي او اې مؤمنانو! تاسې ټول پـه ګـډه سـره الله ﷻ ته توبه وباسئ، ښايي چې بری درپه برخه شي"

**بل ځای فرمايي**

﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاء الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ذَلِكَ أَدْنَى أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ [الأحزاب: ٥٩]

{اې پيغمبره ! خپلو مېرمنو او لوڼو او د مؤمنانو ښځوته ووايه چې پر خپـل ځـان بانـدې د خپلوټکريو پلوونه خواره کړي. دا ډېر مناسب کار دی، ترڅو چې هغوی وپېژندلی شي او ونه ځورول شي او الله تعالی غفور او رحيم دی}.

**د سنت نبوي دليل:**

حضرت عايشه رضي الله عنها وايي چې: «لَقَدْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ يُصَلِّي الْفَجْرَ, فَيَشْهَدُ مَعَهُ نِسَاءٌ مِنْ الْمُؤْمِنَاتِ , مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوطِهِنَّ ثُمَّ يَرْجِعْنَ إِلَى بُيُوتِهِنَّ مَا يَعْرِفُهُنَّ أَحَدٌ , مِنْ الْغَلَسِ»[١]

"د سهار په لمانځه کې به له رسول الله ﷺ سره مؤمنو ښځو هم ګډون کاوه، په داسـې ډول چې په خپلو حجابونو کې به سر تر پايه پټې وې، بيـا بـه بېرتـه کورونـو تـه ستـنـيدلې، د جامې ديټ والي او د سهار د اول وخت د تيارې له امله به چا نه پېژنـدلې چـې نارينـه دي که ښځينه".

په يوه بل حديث شريف کې رسول الله ﷺ بي بي اسماء رضـی الله عنهـا تـه چـې بـاريکې جامې يې اغوستې وې وفرمايل: «يَا أَسْمَاءُ إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيضَ لَمْ يَصْلُحْ أَنْ يُرَى مِنْهَا إِلاَّ هَذَا وَهَذَا وَأَشَارَ إِلَى وَجْهِهِ وَكَفَّيْهِ»[٢].

" اې اسماء! ښځه چې حيض ته ورسيږي (بالغه شي)هغې ته پکار نه دي چې دبدن کومه برخه يې ښکاره شـي، لـه دې او لـه دې څخـه پرتـه، مـخ او دواړو لاسـونو تـه يـې اشـاره وکړه".

---

١ - صحيح البخاري.

٢ - سنن الكبرى للبيهقي.

له پورته قرآني او نبوي لارښوونو څخه په ډاګه څرګندیږي چې حجاب ته پاملرنه د هرې مسلمانې ښځې لازمي دنده ده، همدغه راز په سړیو واجب ده چې پردیو ښځو ته له ضرورت پرته ونه ګوري او د تهمت له ځایونو څخه لیرې وګرځي.

**د حجاب د مشروعیت حکمت**

د محمدي شریعت د اخلاقو له مکارمو څخه یو هم حیاء ده، رسول الله ﷺ هغه د ایمان جز او یوه برخه بللې ده او هغه حیاء چې شرعاً او عرفاً یې په کولو امر شوی دی هغه داده چې ښځه باید دداسې اخلاقو خاونده وي چې هغه یې له فتنو او د شك له ځایونو څخه لیرې وساتي، په دې خبره کې کوم شك نشته چې د حجاب مراعاتول او د محجب لباس اغوستل هغه اخلاق او ګاڼه ده چې د بې حیا خلکو له تېرې او نورو فتنو څخه یې خوندي ساتي، نو حجاب د ښځې مصؤنیت دی نه محرومیت.

د حجاب مراعاتول یوازې په مېړه او ښځه پورې د جنسي اړیکو او د هغو د مقدماتو محدودولو لاره ده او د ټولنې له نفسیاتي سلامتۍ سره ډېره مرسته کوي، د مېړه او ښځې تر منځ د بشپړ صمیمیت د پیدا کیدلو سبب کیږي او یو د بل په وړاندې د ارزښت د لوړیدو باعث جوړیږي.

د حجاب رعایت په ښځو باندې لازم کړای شوی دی، نه په سړو باندې، دا پدې خاطر چې ښځه نظر په بدني جوړښت سره تل د سړي مرغوبه او د مینې د غوښتلو مورد ده.

په ښځه کې همدا فطري زړه راښکون او کشش ددې سبب کیږي، ترڅو سړی د ښځې طلب کوونکی او غوښتونکی شي، ددې علمي او فطري حقیقت په نظر کې نیولو سره، اسلام د واقعي او فطري دین په حیث ښځې په دې مکلفې کړې دي چې خپل بدنونه د پردو نامحرمو سړو څخه پټ کړي، ترڅو د ناپاکو نظرونو مخ څخه محفوظې او امن کې وي، له همدې امله حجاب د ښځو په حق کې یو درناوی او عزت دی نه تبعیض او محدودیت.

**دحجاب د احکامو شرحه**

**د شرم د ځایونو د ساتنې امر**

الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ ښځو ته د خپلو شرم ځایونو د ساتنې امر کړی دی، حجاب او ځان پټول د هغو د ساتنې وسیله ګرځي، ځکه د عورت لوڅول ددې سبب کیږي چې سړي ورته وګوري په هغو کې فکر وکړي او خوند ورڅخه واخلي، بالاخره له دې لارې انسان زنا

او فحشاء ته لار پيدا کوي. رسول الله ﷺ فرمايي: ″سترګې هم زنا کوي او د هغو زنا کتل دي، تر دې چې فرمايي: ″او فرج بيا يا د هغو تصديق او يا تکذيب کوي″.

په تېر شويو آيتونو کې سړي په دې مامور شوي دي چې خپلې سترګې ښکته، ځان له فواحشو ليرې وساتي او ښځې هم د سړيو په شان همداسې ماموري دي.

**د سترګو ښکته ساتل**

نر او ښځې ته لومړنی امر د سترګو د ښکته ساتلو شوی دی او له ښکته ساتلو څخه مقصد د زنا له مقدماتو څخه د سترګو ساتل دي چې په احاديثو کې يې بيان راغلی دی، لکه چې د ښځو له لوري سړو ته کتل ښځو ته د فتنې لامل دی، همدا شان د سړيو له لوري ښځو ته کتل او د هغو له جمال څخه خوند اخيستل د سړيو لپاره د فتنې او فساد منبع ده، نو د شريعت حکم دا دی چې که نظر تصادفي وي هغه ګناه نه لري، خو د دويم ځل او خوند لپاره کتل منعه دي.

په يوه حديث کې رسول اللهﷺ فرمايي: «څوک چې د ښځو محاسنو او ښايست ته ګوري، الله تعالی به د قيامت په ورځ د هغه په سترګو کې سرپ واچوي»[1]

نو اسلامي شريعت د جمال او ښايست ذوق محوه کول نه غواړي، بلکې غواړي چې سړی دې ځان ته يوه ښځه غوره کړي چې خوښه يې وي هغه په نکاح کړي او هغه د توجه او ذوق مرکز وګرځوي او د هغې له ښايست څخه دې خوند واخلي، او له نورو خواوو څخه دې ځانونه وساتي چې د خپلې ښځې په ځای په بل لوري وانه وړي او په فحشا او ناروااوو کې ونه لوېږي.

**د زينت له ښکاره کولو څخه منعه**

د سترګو د ښکته ساتلو حکم هم نارينه وو او هم ښځو ته شوی دی، خو اجنبي ته د ښکلا ښکاره کول ښځې ته حرام ګرځول شوي دي، ځکه د ښځې بدن پرته له مخ او لاسونو ټول عورت دی چې پرديو سړيو ته يې ښکاره کول جواز نه لري.

**هغه زينت چې ښکاره کولای شي**

هغه زينت چې ښکاره کولای يې شي، هغه په معين چوکاټ کې دی چې هغه د جامو، لاسونو، مخ، سترګو رنجو، نکريزو، زيوراتو لکه د لاس د ګوتو زينت دی او ددې زينت

---

١ - سنن ابی داود.

ښکارول هغو کسانو ته جواز لري چې له هغو سره يې نکاح د ابد لپاره حرامه وي، او يا هغه ماشومان او لاس لاندې چې له جنسي مسايلو سره مينه نه لري.[1]

له نومړو سره پرته هېڅوك ددې حق نه لري چې د ښځې زينت ته وګوري، حتى ښځو ته د دې ممانعت دى چې د تګ په وخت کې خپلې پښې په داسې زور سره ووهي چې د هغوى د زيوراتو غږ څرګند شي او د خلکو د پاملرنې سبب شي لکه چې مو وويل د زينت ښکاره کول په يوه محدود او کوچني چوکاټ کې دي او هغه دا دى چې له ارادې پرته ښکاره شي.

ښځه خپل ظاهري زينت خپلو هم جنسو ښځو ته ښکاره کولاى شي، خو که ښځه ناپيژندل شوې وي او يا د بد شهرت خاونده او يا شك منه وي هغو ته هم د ذکر شوي زينت ښکاره کول پکار نه دي چې د روايتونو له مخې د فتنې سبب کيږي.

## د عورت پټوالى

د عورت پټول که هغه په لمانځه کې وي او که له لمانځه څخه بهر وي له ديني فرايضو څخه دي، حتى که هېڅوك هم نه وي بايد چې عورت يې پټ وي، په يوه حديث کې يوه صحابي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې يا رسول الله که موږ يوازې يو څه به کوو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: الله تعالى تر ټولو ددې حق دار دى چې خلك ورڅخه حيا وکړي.[2]

## د عورت پټولو مسايل

١. د ښځو او سړيو يو بل ته بې ضرورته بيا بيا کتل جواز نه لري، بلکې يوازې لومړى کتل روا دي، خوکه ضرورت و لکه د ګواهى په وخت کې، يا د مرض ځاى ته د ډاکتر کتل روا دي.

٢. نا محرمو سړيو ته د ښځې له مخ، لاسونو او پښو څخه پرته ټول بدن عورت دى.

---

١ - تفسير ابن کثير.

٢ - سنن الترمذى.

۳. محرمو سړیو ته یې له نامه تر ځنگنو، خیټه او شا عورت دی. یعنې مخ، سر او وېښتانو ته یې کتل جواز لري. د مخ، سر، سینې (گرېوان) لینگو، متو او وېښتانو ته د نارینه محارمو کتل، ځکه جواز لري چې دغه ځایونه د گاڼو د ځړولو ځایونه دي.[1]

٤. سړی د خپلې ښځې ټول بدن ته کتلای شي او هم یې مسه کول ورته جواز لري.

٥. یوه ښځه د بلې ښځې له عورت څخه پرته ټول بدن ته کتلای شي او له نامه تر زنگنونو(خیټه او شا هم پکې شامل دي) عورت دی چې کتل ورته جواز نه لري. خو ډاکتره ښځه د ښځې فرج ته د ضرورت له مخې کتلای شي.

٦. د سړیو عورت د ښځو او نارینه وو په حق کې له نامه څخه تر ځنگنونو پورې دی.

٧. د ښځو لپاره د چسپو جامو کارول چې د بدن لوړ او ټیټ ځایونه یې ورڅخه څرگند شي جواز نه لري، که څه هم لمونځ ورسره کیږي، ځکه حجاب ته پاملرنه په پراخو جامو سره کیږي.

باید په پام کې ولرو چې د اسلام مبارک دین د پردې حکمونه د ټولنې د سلامتیا او خوندیتوب لپاره ایښي او موخه یې له هر ډول اخلاقي او ټولنیزو مفاسدو مخنیوی او د یوې پاکې او سالمې ټولنې رامنځ ته کول دي، د ښځو له خوا د پردې مراعاتول، د سړو له خوا په جامو او ناسته ولاړه کې د حیاء او ټولنیزو ادابو مراعاتول هېڅکله په انسانانو کې د محدودیت او بندیز لگولو په معنا نه وي.

دا حکمونه نه یوازې دا چې د ټولنې د پرمختگ مخه نه نیسي، بلکې د ټولنې د روحي او جسمي آرامۍ او ډاډ لامل کیږي او د ټولنې ودې او پرمختگ ته لاره هواروي.




۱. حجاب تعریف کړئ.

۲. حجاب مراعاتول څه حکم لري؟

۳. د حجاب د مشروعیت حکمت څه دی؟

٤. د حجاب په احکامو کې کومې خبرې ضروري دي؟

٥. ښځه کوم زینت ښکاره کولای شي؟

---

[1] ــ الاختیار لتعلیل المختار

# د ښځې او مېړه د ستونزو د حل لارې

د انساني طبیعت له مخې کله کله د ښځې او خاوند تر منځ ستونزې او غلط فهمي پیدا کیږي، اسلام د هغو د حل لارې موږ ته ښودلې دي.

**د نېکمرغه مسلمانې کورنۍ اصلي انځور**

د اسلام دین له مسلمانانو څخه په کلکه غوښتنه کوي، چې په خپلو منځونو کې ښه چلند وکړي او دې ته يې هڅوي چې یو په بل ښې لورینې ولري او خاص ډول ښځه او خاوند یې متقابل احترام او خلوص ته هڅولي دي. یو بل ته د زیان نه رسولو حکم کوي، سړي ته له ټولو نژدې شخص د هغه ښځه او ښځې ته تر ټولو نژدې کس د هغې خاوند دی، نو ددې لپاره چې دوی په نېکمرغۍ کې ژوند تېر کړي، یو بل ته نه یوازې داچې د ستونزو لامل نه شي، بلکې د یو بل لپاره سرښندنه او تېریدنه وکړي، نو ځکه د اسلام شریعت ښځې او خاوند دواړو ته ځانګړې لارښوونې کړي، مېړه ته امر دی(**وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ**)[1] په ښه توګه ژوند ورسره وکړئ. په حدیث کې راغلي: د الله ﷻ په نزد په تاسو کې ډیر ښه هغه څوك دی چې خپلې کورنۍ ته ډیر ښه وي او زه په تاسو ټولو کې خپلې کورنۍ ته غوره یم.[2]

له عایشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ له جهاد څخه علاوه په هیڅا هم ګذار ندی کړی او نه یې څوك وهلي دي.

همدا راز ښځو ته د اطاعت امر شوی، په حدیث شریف کې راغلي که له الله تعالی څخه پرته بل چاته سجده کیدلای، نو ښځې به خاوندانو ته په سجده کولو مامورې شوې وای.[3]

دا ټول د ښیرازه ګډ ژوند لپاره دي، ځکه چې نېکمرغي په مینه، محبت، زړه سوي او اطاعت کې ده، په تاوتریخوالي او سختۍ کې بدمرغي پرته ده او د کورنۍ د ړنګیدو سبب جوړیږي.

خو څرنګه چې د طبیعي او محیطي لاملونو له کبله، کله نا کله په ځینو کورنیو کې دا غوره اصلي حالت بدلون مومي او په کورنیو اړیکو کې ستونزې راولاړیږي، نو اسلامي شریعت ددې غیر مطلوب حالت لپاره هم د حل لارې وړاندې کړې چې په لاندې توګه بیانیږي:

---

[1] سورة النساء آیت: ۱۹.

۲ - شرح صحیح البخاری.

۳ - سنن أبي داود.

**د ښځې او خاوند تر مينځ د ستونزو د حل لارې**

که چیرې په ازدواجي ژوند کې ستونزې پیدا شي او ښځه په ناحقه ډول نافرماني او سرغړونې کوي نو شریعت د هغو د حل لاره ښکاره شودلې ده چې په نصیحت، ځای جلا کولو پیلیږي او بیا په طلا ق پای ته رسیږي. الله تعالیﷻ فرمايي:

﴿وَاللاَّتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلاَ تَبْغُواْ عَلَيْهِنَّ سَبِيلاً إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا﴾ [النساء: ۳۴] " او تاسې چې د کومو ښځو له سر غړونې څخه اندیښمن یاست: هغوی پوه کړئ، د خوب ځایونه ورڅخه جلا کړئ او ویې وهئ، (آسانه وهل، داسې سخت وهل نه چې په بدن اثر پریږدي یا یې څه مات شي)، نو که هغوی ستاسې فرمان برداري شي، نو هغو ته د لاس غځونې له پاره بیځایه پلمې مه جوړوئ، یقینا الله تعالی ډیر لوړ او لوی ذات دی.

د حل ددغو لارو د روا کیدلو یواځینی مقصد د کورنۍ دساتنې هڅه ده، دا دنفوسو او د حالاتو د اصلاح لپاره یو وقایوي عمل دی، نه داچې زړونه له فساد، بغض او کینې څخه ډک کړي.

**د میړه او ښځې د کورنۍ مینځګړتوب**

که له ذکر شویو لارو د ښځې او میړه تر مینځ ستونزې حل او محبت پیدا شو، خو ښه او که نه نو بیا اسلام ددې امر کوي چې د دواړو خپلوان دې مداخله وکړي، الله تعالیﷻ فرمايي: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُواْ حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا إِن يُرِيدَا إِصْلاَحًا يُوَفِّقِ اللّهُ بَيْنَهُمَا﴾ [النساء: ۳۵] "او که تاسې د میړه او میرمنې د اړیکو د خرابیدو په باب اندیښمن یاست؛ نو یو منځګړی د میړه له خپلوانو څخه او یو د میرمنې له خپلوانو څخه وټاکئ، که هغوی دواړه روغه جوړه کول وغواړي نو الله به د هغو دواړو تر مینځ د توافق لاره برابره کړي".

او په دې کې شک نشته چې ددغو دواړو اړخونو له مینځګړو څخه خیرخواه او د ښه نیت او ارادې لرونکي کسان غوره کول، له هغو مهمو اسبابو څخه دي چې دواړه لوري په خپل ورسپارل شوي کار کې بریالیتوب ته رسولای شي، چې هغه د اختلاف او ستونزو د اسبابو لیرې کول او د زوجیت د ژوندانه بیرته راګرځول دي.

**د حل وروستی لاره**

که دا ټولې هڅې ناکامې شوې او د اصلاحي کوششونو څخه هم نا امیدي راغله، نو بیا د ستونزو د لیرې کولو لپاره طلاق یواځینۍ لاره پاتې کیږي چې اسلام روا کړې ده، الله تعالیﷻ فرمايي: ﴿وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّهُ كُلاًّ مِّن سَعَتِهِ وَكَانَ اللّهُ وَاسِعًا حَكِيمًا﴾ [النساء: ۱۳۰]

{خو که مېړه او ښځه يو له بله بېل هم شي، نو الله به په خپل پراخ قدرت سره هر يو بـل تـه لـه محتاجۍ نه بې نيازه کړي. د الله ﷻ د لورينې لمن ډېره ارته ده او هغه د حکمت خاوند دی}.

په دې آيت کې مېړه او ښځې دواړو ته وروسته له دې چې له لوی نعمت (زوجيت) څخه چې الله تعالیٰ ﷻ ورپه برخه کړی و محروم شول تسليت او ډاډگيرنه ورکړل شوې ده.

﴿وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النَّسَاء فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَلاَ تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لَّتَعْتَدُواْ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ﴾ [البقرة: ۲۳۱] « او کله چې تاسې ښـځو تـه طـلاق ورکړئ او د هغو عدت په پوره کېدو شي، نو يا يې په ښه توگه وساتئ يا يې په ښه شان رخصت کړئ محض د ربړولو لپاره يې مه ايساروئ چې دا به تېرى زيـاتي وي او څـوک چې دا کار وکړي هغه به په حقيقت کې خپله پر خپل ځان ظلم وکړي».

**که ستونزې د سړي له خوا وي**

که چيرې ښځه ووينې چې مېړه يې رغبت ورسره نه لري، مخ ورڅخـه اړوي او سـتونزې ورته پيدا کوي، په دې صورت کې ښځې ته په کار دي چې د ستونزو په سبب ځان پـوه کړي او د هغو د ليرې کولو او علاج لپاره هڅه وکړي، نـو کـه چيـرې دا سـتونزه پـه دې حل کيده چې د سړي د خوښۍ لپاره ښځه له خپلو ځينو حقوقو څخه ورتېره شـي، دا ښـه کار دی چې د تاوتريخوالي د ډېريدو مخه ورباندې ونيسي، الله تعـالیٰ ﷻ فرمـايي: ﴿وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِن بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلاَ جُنَاْحَ عَلَيْهِمَا أَن يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ [النساء : ۱۲۸] «کله چې کومه ښځه د خپل مېړه له نـاوړه چلنـد يـا مـخ اړونـې څخـه پـه وېره کې وي، نو هېڅ باک نشته، که مېړه او مېرمن (د څه حقوقو پـر کمولـو زيـاتولو) پـه خپلو مينځو کې روغه جوړه وکړي. روغه جوړه په هر حال ډېره ښه ده».

او که مېړه د ښځې په حق کې ظلم کوي، نفقه نه ورکوي، يا بـې دينـه وي، نـاوړه او نـاروا اخلاق لري، اسلام ښځې ته دا حق ورکړی چې قاضي ته مراجعه وکړي او د خلعې غوښتنه ورڅخه وکړي. الله تعالیٰ ﷻ فرمايي: ﴿وَلاَ يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُواْ مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا إِلاَّ أَن يَخَافَا أَلاَّ يُقِيمَا حُدُودَ اللّهِ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلاَّ يُقِيمَا حُدُودَ اللّهِ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ [البقره : ۲۲۹]

" او تاسو (مېړونو) ته روا نه دي چې له هغه څه څخه چې دوی ته مو ورکړي (مهر) ورڅخه واخلئ، مگر که دواړه د الله ﷻ پرحدودو په دريدو کې انديښمن وي په داسې حال کې که ښځه د ځان د خلاصونې لپاره (مېړه ته) څه ورکړي، نو په دوی دواړو څه گناه نشته".

**د طلاق اختیار خاوند سره دی**

الله تعالی ﷻ د طـلاق اختیـار یـوازې د نارینـه پـه لاس کـې ورکـړی او پـه دې کـې ډېـر حکمتونه دي چې ځینو ته یې په لاندې ډول اشاره کېږي:

۱.سړی تر ښځې په خپلو عواطفو او احساساتو زیات کنټرول او واکمني لـري، نـو کـه د طـلاق اختیار ښځې ته ورکړ شي، نو ډېرې به په یوه معمولي ستونزه د طلاق خواته مخه کړي.

۲.نارینه د واده په مهال مهرونه اداء کوي، نور مصارف هم دوی کوي او ښځې په واده کې مصارف نه لري، بلکې مهرونه لاس ته راوړي، نو سړي د نکاح په قطع کولو کې سنجول شوی قدم پورته کوي او په آسانه طلاق نه ورکوي.

۳.د اسلام شریعت د طلاق د کمیدلو پلوی دی او له همدې کبله یې په حلالو چارو کـې تر ټولو ناوړه کار شمېرلی، خو د نا چارۍ په صورت کـې یـې یـوازې سـړیو تـه د هغـه کارولو حق ورکړی، که ښځو ته یې هم دا حق ورکړی وای، نو بیا بـه د طـلاق ورکولـو پدیده ډېره پېښیده او کورنۍ به د ړنګېدو له تهدید سره زیاته لاس او ګریوان وه.

**فعالیت**

ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ډلو وویشي چې په لاندې موضوعاتو باندې یو لـه بـل سره خبرې اترې وکړي:

۱. د ښځې او خاوند تر منځ د ستونزو د حل لارې کومې دي؟
۲. که ستونزې د سړي له خوا وي، څه کول پکار دي؟
۳. د طلاق اختیار خاوند ته ولې ورکړ شوی دی؟




۱. د نېکمرغې مسلماني کورنۍ انځور بیان کړئ.
۲. د ښځې او خاوند تر منځ د ستونزو د حل لارې څه دي؟
۳. د ښځې او خاوند د ستونزو د حل ورروستنۍ لاره کومه ده؟
٤. که ستونزې د سړي له خوا وي، نو حل څه دی؟
۵. د طلاق اختیار خاوند ته ورکړ شوی دی، په دې کې څه حکمتونه دي؟



**کورنۍ دنده**

د مسلمانې کورنۍ اصلي انځور څه دی؟ په دې هکله یوه مقاله ولیکئ.

# طلاق

د الله ﷻ په وړاندې په حلالو کې ناخوښ حلال طلاق دی او شریعت د مېړه او ښـځې تـر منځ د ستونزو د وروستي حل په توگه روا کړی دی.

**د طلاق تعریف**

**طلاق په لغت کې:** د قید لېرې کولو ته وایي

**په اصطلاح کې:** په ځانگړو الفاظو سره د نکاح د قید لېـرې کولـو او پـای تـه رسولو تـه طلاق ویل کیږي.

**د طلاق د مشروعیت حکمت**

طلاق له هغو حلالو شیانو څخه دی چې الله تعالیﷻ تـه خـوښ نـه دی، لـیکن دا د هغې مریضې کورنی علاج دی چې نورې ټولې دواوې یې کـارولې وي او یـوازې همدغـه دوا ورته پاتې وي، د طلاق مثال داسې طبیب او ډاکتر ته ورته دی چې په بدن کـې د خـراب شوي غړي پرېکیدو ته اړ کیږي، تر څو نور بدن ته سرایت ونه کړي.

کله چې د مېړه او ښځې حالت دې حد ته ورسیږي چې کرکه او کینه د مینـې او محبـت ځای ونیسي، د ژوند پر مخ بیول ورته گران او ناشـوني شـي، نـو بیـا غـوره دا ده چې پـه خوشحالی سره بیل شي او د خپلې خوښې نوی ژوند پیل کړي، د کرکـې لـه شـتون سـره سره د زوجینو یو ځای اوسېدل او د طـلاق لاره بنـدول لکـه پـه کفـري ټولنـو کـې چـې معمول دي، ددې باعث گرځـي چـې نـاروغي د کـورنۍ نـورو غـړو تـه سـرایت وکـړي، طبیعتونه یې فاسد او له کینو څخه ډکیږي، انساني پاك احساسات یې بدلون پیدا کـوي، د ماشوم ژوند بیا د مور پلار له داسې گډ ژوند څخه چې هغـه لـه اختلافـه او نفرتونـو ډك وي په جلا والي کې ډیر ښه او یا کم ضرره وي، له کرکجنو او متخاصـمو والـدینو سـره به څنگه ماشوم صالحه تربیه تر لاسه کـړي؟ او لـه کومـه بـه د ماشـوم د مینـې، شـفقت او مهربانی عاطفې ته څواب وویل شي، په داسې حال کې چې هغه ورتـه پـه دې عمـر کـې ډیره اړتیا لري. ناروغه کورنی د ټولنې د فساد سبب جوړیږي، نو هغه سړی بـه څـه کـوي چې له خپلې ښځې نه یې کرکه وي بې له دې چې ځان ته به بله ملگرې پیـدا کـوي او د شهوت غریزه به ورباندې سړوي، ښځه به بیا خامخا دې ته ورته کار کوي او پـه دې ډول

به د همدې کورنۍ ناروغي د ټولنې نورو وګړو ته سرایت کوي او ټولنه به په فساد اخته کیږي، نو ددې قاعدې له مخې چې: له دوو زیانونو څخه کم او خفیف زیان غوره کیږي، اسلام طلاق رواکړی دی.

**اسلام صبر او زغم ته ترغیب ورکوي**

اسلام د ستونزو با وجود هم مېړه او ښځه دواړه دې ته هڅولي دي چې له صبراو زغم څخه کار واخلي، نارینه یې هڅولي چې د ښځو په طبائعو دې صبر وکړي او د زوجیت دا ژمنه دې نه ماتوي، الله تعالیٰ ﷻ فرمايي:

﴿وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَى أَن تَكْرَهُواْ شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا﴾ [النساء: ۱۹]

«له هغو (خپلو ښځو) سره په ښه چلند ژوند تېر کړئ که ستاسې هغوی نه خوښيږئ، نو کېدای شي چې تاسې به یو شی نه خوښوئ، خو الله ﷻ به په هغه کې ډېرې ښېګڼې ایښې وي».

همدا شان اسلام ښځه هم دې ته ترغیب کړې چې له مېړه سره په ژوند کولو کې د صبر او زغم څخه کار واخلي، په آسانۍ دې داسې حالات نه جوړوي چې د کورنۍ جوړښت ته یې زیان ورسیږي، په یوه حدیث کې رسول الله ﷺ فرمايي:

«أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا الطَّلَاقَ فِي غَيْرِ مَا بَأْسٍ فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ» "کومه ښځه چې بې موجبه له مېړه څخه طلاق غواړي، نو په هغې د جنت بوی حرام دی".

**د طلاق حُکم**

په طلاق کې اصل منعه او نه کول دي، خو د اړتیا لپاره روا شوی دی چې له امله یې د ښځې او مېړه تر منځ بېلتون راځي.

**د طلاق شرطونه**

په طلاق کې مهم شرطونه په لاندې ډول دي:

۱. طلاق ورکوونکی به زوج وي، یعنې په صحیح نکاح به دښځې خاوند وي.
۲. طلاق ورکوونکی به بالغ وي، نو د هلك طلاق نه واقع کیږي.
۳. طلاق ورکوونکی به عاقل وي، نو د لېوني طلاق نه صحیح کیږي.

٤. طلاق به په داسې الفاظو ورکوي چې صراحتاً یا کنایتاًورباندې دلالت وکړي

٥. د کنایی الفاظو په صورت کې به سړی د طلاق نیت لري.

**فعالیت**

زده کوونکي دېووایي چې ددوی په سیمو کې سړي خپلو ښځو ته کوم الفاظ استعمالوي چې له ورایه د طلاق معنا ورکوي؟




١. طلاق تعریف کړئ.

٢. د طلاق د مشروعیت حکمت بیان کړئ.

٣. اسلام مېړه صبر او زغم ته رابولي دلیل یې بیان کړئ.

٤. د طلاق حکم څه دی؟

٥. د طلاق شرطونه بیان کړئ.

# د طلاق ډولونه

له ابراهیم النخعي رحمه الله څخه روایت شوی دی چې صحابه کرامو به د سنت مطابق دا غوره ګڼل چې ښځې ته له یوه څخه زیات طلاق ورنه کړي (په یو ځل باید درې طلاقه ورنکړل شي) یو طلاق به یې ورکاوه اوعدت به یې تېرېده.

**د طلاق ډولونه**

طلاق په مختلفو اعتبارونو وېشل شوی چې په لاندې توګه بیانیږي:

**طلاق د لفظ له مخې:** طلاق د صیغې او لفظ له مخې په دوه ډوله دی: صریح او کنایه.

۱. **صریح:** هغه لفظ دی چې د طلاق مراد ورڅخه په واضح ډول معلومیږي، په عرف او رواج کې هغه په طلاق دلالت کوي، لکه چې ښځې ته ووایي: ته طلاقه، یا ته په ما حرامه یې.

د صریح طلاق حکم: د صریح لفظ په ویلو سره بې له نیت کولو طلاق واقع کېږي، نو که ښځې ته ووېل شي چې ته طلاقه یې او بیا دعوه وکړي چې مطلب مې طلاق نه و، دده دغې دعوې ته اعتبار نه ورکول کیږي.

۲- **کنایه:** په طلاق ورکولو کې داسې لفظونو ته وایي چې هم د طلاق او هم د بل شي معنا ولري، خو خلک یې د صریح طلاق په معنا نه پېژني، لکه چې ووایي: له خپلې پلارګنۍ سره دې یو ځای شه، یا له کوره ووځه.

**دکنایي طلاق حکم:** د کنایي لفظ په ویلو سره طلاق هلته واقع کېږي چې نیت یې د طلاق وي او که یې نیت د طلاق نه وي طلاق نه واقع کیږي.

**طلاق د بدعت او سنت له مخې:** د سنت او بدعت له مخې طلاق په دوه ډوله دی: سني او بدعي.

۱.**سني طلاق:** سني هغه طلاق دی چې د سنت موافق وي او هغه داسې چې سړی خپله ښځه د ریښتیني عذر د لرلو په اساس په یوه طلاق په داسې طهر کې طلاقه کړي چې ورسره یو ځای شوی نه وي او حامله هم نه وي، له یوه طلاق اچولو وروسته یې پرېږدي چې عدت یې تېر شي او ورڅخه بیله شي دا غوره لاره ده. خو که د سړي د جلا کیدو قصد د دلایلو پر بنسټ پوخ وي د دې لپاره چې خپله او د ښځې طمعه قطعه کړي او په یوه طهر کې یو په بل طهر کې دویم او په دریم طهر کې دریم طلاق ورواچوي، دا هم سني طلاق دی.

۲. **بدعي طلاق:** هغه طلاق دی چې د سنت طريقې خلاف ورکړ شي هغه داسې چې خاوند خپلې مېرمنې ته په يو ځل دوه يا درې طلاقه، يا د حيض او يا دحمل په دوران کې ورته طلاق ورکړي يا په داسې طهر کې طلاق ورکړي چې په هغه کې يې جماع کړې وي، دا طلاق واقع کيږي، خو ورکوونکی يې گنهگار دی.

**دريم**- د رجعيت او بينونت له مخې طلاق په درې ډوله دی:

۱. **رجعي طلاق:** هغه دی چې زوج له طلاق څخه وروسته ددې واك او اختيار ولري چې خپله مېرمن راوگرځوي بې له دې چې نوي عقد ته اړتيا پيدا شي، د هغې خوښه وي او يا يې نه وي. دا د لومړی او دويم طلاق له ورکولو وروسته، خو په دې شرط چې د عدت وخت يې لا پاتې وي او که يې د عدت وخت تېر شو، بيا رجعي طلاق په بائن بدليږي او د مېرمنې خاوند له نوې عقد پرته د هغې د راگرځيدو واك نه لري.

۲. **باين طلاق:** هغه طلاق ته وايي چې په کنايي الفاظو لويدلی وي، لکه چې ورته ووايي ته نوره جلا کړای شوې يې، کورته دې ولاړه شه، يا له کوره ووزه او داسې نور، خو په دې شرط چې د طلاق نيت ولري، په دې صورت کې يو باين طلاق واقع کيږي زوج کولای شي په نوي عقد او مهر طلاقه کړې ښځه بېرته په نکاح کړي.[۱]

۳. **مغلظ طلاق:** هغه طلاق ته وايي چې په درې طلاقه سره خپله مېرمن طلاقه کړي، په دې صورت کې خاوند نه شي کولای چې طلاقه کړې مېرمن ځان ته راوگرځوي، خو هلته يې په نکاح کولای شي چې دا مېرمن له بل چا سره په صحيحې نکاح سره واده وکړي، هغه ورسره يو ځای شي، بيايې يا طلاقه کړي او يا ورڅخه مړ شي او عدت يې هم تېر شي، نو ده ته په دې صورت کې روا ده چې نوې نکاح ورسره وکړي.

**فعاليت:** زده کوونکې دې په خپلو منځو کې د طلاق ډولونه روښانه کړي.




۱. طلاق د لفظ له مخې په څو ډوله دی؟ بيان يې کړئ.
۲. طلاق د بدعت او سنت له مخې په څو ډوله دی؟ شرحه يې کړئ.
۳. د طلاق ډولونه د رجعيت او بينونت له مخې په گوته کړئ.

---

۱ - العناية شرح الهداية - (٥ / ٢٧٢).

# د تفريق ډولونه [۱]

له طلاق څخه علاوه د ښځې او خاوند تر منځ د خلع، لعان، ایلاء، او ظهار په ذریعه هم بیلتون را منځ ته کیږي، غواړو په دې لوست کې په همدې موضوعاتو خبرې وکړو.

**۱. خلع**

کله کله د مېرمنې او خاوند تر منځ ژوند تریخ او ستونزمن شي، مېرمن کولای شي د څه مال په عوض کې خپل خاوند په خلع کولو قانع او ځان ورڅخه جلا کړي.

**د خلع تعریف**

خلع په لغت کې: لېرې کولو ته وايي.

د فقهاوو په اصطلاح کې: له ښځې څخه د هغې د مال په عوض کې د خلع په لفظ سره د نکاح د واک ختمولو ته ویل کیږي[۱]

**د خلع مشروعیت**

کله کله د طبیعي، اخلاقي، دیني او صحي سببونو له امله د مېرمن او خاوند ترمنځ ژوند ستونزمن شي چې په نتیجه کې مېرمن، نور نه غواړي چې د خپل خاوند سره ژوند وکړي. د همدې اړتیا له مخې اسلامي شریعت خلع روا کړې، څو د مالل په عوض کې وکړای شي ځان له دې حرج او تکلیف څخه خلاص کړي، تر څو د الله جَلَّ جَلَالُهُ د حدودو څخه د تېرې او د خاوند د اطاعت په مخالفت کې ونه لویږي.

**دخلع د مشروعیت دلیل**

**الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي:** ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلاَّ يُقِيمَا حُدُودَ اللهِ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ [البقرة: ۲۲۹]

" نو که تاسې ته دا وېره وي چې هغوی دواړه به د الله جَلَّ جَلَالُهُ پر حدودو ټینګ پاتې نشي، نو د هغو دواړو په منځ کې ددې خبرې باک نشته چې مېرمن خپل مېړه ته یو څه بدل ورکړي (او ځان ورڅخه بېل کړي.) "

**نبوي حدیث:** له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې د حضرت ثابت بن قیس الانصاري رضي الله عنه مېرمن (**جمیلة** بنت أبي بن سلول) رسول الله ﷺ ته راغله ویې ویل: اې د الله رسوله ! زه د ثابت بن قیس په دین او اخلاقو نیوکه نه لرم، خو نه غواړم

---

۱ - العناية شرح الهداية - (۵ / ۴۶۵).

چې د تریخ ژوند له امله په ناروا کار او د کفر په اسبابو کې ولویږم، رسول اللهﷺ ورته وفرمایل: (ته غواړې چې خپل باغ بېرته ورکړې) هغې وویل: هو، نو ده ته یې باغ بېرته ورکړه او رسول الله ﷺ ثابت رضی الله عنه ته د منلو امر وکړ، نو یې پرېښوده.[1]

## د خلع حکم

د خلع په تر سره کېدلو باین طلاق واقع کېږي او په ښځې د ټاکلي مال ورکول لازمیږي.

## د خلع او طلاق تر منځ توپیر

طلاق د سړي له لوري ورکول کېږي او خلع د مېرمنې له خوا د یوه څه مال په ورکولو غوښتل کېږي. کله چې د دواړو اړخونو موافقه راغله، خلع تر سره کېږي او په ښځې باندې د ټاکلي مال ورکول لازمېږي.

## بې سببه د خلع د غوښتنې کراهیت

له کوم موجه سبب څخه پرته د خلع غوښتنه مکروه کار دی، په یوه حدیث کې له رسول الله ﷺ څخه روایت شوی چې فرمایي: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ اخْتَلَعَتْ مِنْ زَوْجِهَا مِنْ غَيْرِ بَأْسٍ لَمْ تَرِحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ»[2] "هره ښځه چې له اړتیا پرته له خاوند سره خلع وکړي د جنت بوی به یې تر سپږمو نه شي".

او په بل حدیث کې فرمایي: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلاَقًا فِي غَيْرِ مَا بَأْسٍ فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ»[3] "هره ښځه چې له شدیدې اړتیا پرته له خاوند څخه د طلاق غوښتنه وکړي په هغې د جنت بوی حرام دی.

## د خلع احکام

- که چیرې جفا، نافرماني او بده کړنه د خاوند له خوا وي، نو سړي ته دا مکروه ده چې له مېرمنې څخه بدل واخلي، خو که نافرماني د مېرمنې له خوا وي بیا د خلع په مقابل کې د عوض او مال اخیستل روا دي.
- هر هغه شی چې مهر او د نکاح بدل جوړېدلای شي، هغه د خلع عوض او بدل هم کېدای شي.

---

١ – السنن الكبرى للبيهقي.

٢ – مسند الصحابة في الكتب الستة.

٣ – السنن الكبرى للبيهقي.

• خلع د زوج له موافقې پرته صحت نه پیدا کوي، ځکه طلاق ورکول د سړي حق دی، نو که خاوند يې ونه مني خلع نه واقع کيږي.

**۲- لعان**

**د لعان تعريف**

لعان په لغت کې: له لعن څخه اخيستل شوی چې لېرې کولو ته وايي.

په شرعي اصطلاح کې: د مېرمنې او خاوند تر منځ له لعن او غضب سره شهادت ورکولو ته وايي چې د زنا د شهادت په څېر د څلورو شاهدانو ځای نيسي، سړی په دې ډول شاهدي ورکولو سره د قذف له حد څخه خلاصيږي او قسمونه يې د څلورو شاهدانو حکم پيدا کوي او ښځه په دې ډول شاهدي ورکولو سره د زنا حد له ځان څخه دفع کوي او له حد څخه ژغورل کيږي.

**د لعان مشروعيت**

د لعان مشروعيت په قرآن کريم ثابت دی، الله تعالیﷻ فرمايي:

﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ۞ وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ۞ وَيَدْرَأُ عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ۞ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِن كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ [النور: ۶ – ۹]

«او کوم کسان چې پر خپلو مېرمنو باندې تور لګوي او له هغو سره په خپله د هغو له خپل ځان نه پرته نور شاهدان نه وي، نو له هغو نه د يوه تن شاهدي (دا ده چې هغه) څلور ځله په اللهﷻ باندې په قسم خوړلو سره شاهدي ووايي چې هغه (په خپل تور ويلو کې) رېښتونی دی او پنځم ځل ووايي چې پر هغه باندې دې د اللهﷻ لعنت وي که هغه (په خپل تور ويلو کې) دروغجن وي او له ښځې نه د سزا مخنيوی په دی ډول سره کېدای شي چې هغه څلور ځله په اللهﷻ باندې په قسم خوړلو سره شاهدي ووايي چې دغه سړی (په خپل تور ويلو کې) دروغجن دی او په پنځم ځل کې ووايي چې پر هغې باندې دې د اللهﷻ غضب وي که هغه (په خپل تور ويلو کې) رېښتونی وي.»

له ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ د انصارو د يوه سړي او دده د ښځې تر منځ لعان تر سره کړ او دوی يې سره جلا کړل.[۱]

**د لعان د مشروعيت حکمت**

لعان ددې لپاره روا شوی دی چې د تور لګولو په صورت کې سړيو ته د خپل حريم څخه د دفاع وروستۍ لاره جوړه شي، څو سړی وکولای شي دنورو شاهدانو د نه شتون

۱ – صحيح البخاري.

په صورت کې د وروستی وسیلې په توګه له خپلو مؤکدو ګواهیو څخه کار واخلي او مېرمنې ته دده د حریم د پایمالولو سزا ورکړي. خو څرنګه چې د اسلامي شریعت بنسټ په عدل ایښودل شوی، ښځې ته هم له ځان څخه ددفاع او د خاوند د تور د لیرې کولو حق ورکړ شوی، څو په خپلو مؤکدو ګواهیو دا عذاب او پیغور له ځان څخه لیرې کړي.

### د لعان کیفیت

کله چې خاوند خپله مېرمن په زنا تورنه کړي او یا د هغې د ماشوم له نسب څخه منکر شي (چې دا هم د صریح زنا کولو په معنا ده) او په دې خبره کوم ښکاره دلیل هم ونه لري، ښځه دده تور ونه مني او د قذف د حد د اقامت غوښتنه وکړي، نو قاضي به د دوی تر منځ د لعان پریکړه کوي او دواړه به هغه مخصوص الفاظ چې قرآن کریم د لعان لپاره ټاکلي د قاضي په وړاندې وايي، له دې څخه وروسته قاضي ښځه او خاوند سره جلا کوي چې بیا دا مېرمن په دې سړي باندې حرامیږي.

### د لعان حکم

د لعان د شاهدۍ په ویلو د مېرمن او خاوند تر منځ جلا کیدل واجبیږي، قاضي به د دوی د جلا والي حکم کوي، په دې سره باین طلاق واقع کیږي او له مېرمنې سره جماع او د جماع دواعي حرام ګرځي، که څه هم سره جلا شوي لا هم نه وي.




۱. خلع تعریف کړئ.
۲. د خلع د مشروعیت حکمت څه دی؟
۳. د خلع د مشروعیت دلیل څه دی؟
٤. د خلع حکم څه دی؟
۵. آیا د خلع او طلاق توپیر شته؟
٦. بې سببه د خلع کول څه حکم لري؟
۷. لعان تعریف کړئ.
۸. د لعان د مشروعیت حکمت او دلیل روښانه کړئ.
۹. د لعان کیفیت څه دی؟ بیان یې کړئ.
۱۰. د لعان حکم وښیئ.

# د تفریق پاتې ډولونه (۲)

**۳- ایلاء**

**ایلاء په لغت کې:** قسم ته وایي.

**په شرعي اصطلاح کې:** په تاکید سره داسې قسم کولو ته وایي چې خپلې منکوحې ته به تر څلورو میاشتو یا له هغه زیات وخت پورې نه ورنږدې کیږي (جماع به ورسره نه کوي).

**د ایلاء کفاره:**

کله چې خاوند د څلورو میاشتو څخه مخکې خپلې مېرمنې ته رجوع وکړي کفاره پرې لازمیږي، دغه کفاره د قسم کفاره ده.

**د ایلاء مشروعیت**

د ایلاء مشروعیت د الله تعالیﷻ په دې قول ثابت دی: ﴿لِّلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ فَإِنْ فَآؤُوا فَإِنَّ اللّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۞ وَإِنْ عَزَمُواْ الطَّلاَقَ فَإِنَّ اللّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ [البقرة: ۲۲۶ – ۲۲۷]

"کوم خلک چې له خپلو مېرمنو سره د نا اړوندی لوړې کوي، هغوی ته څلور میاشتې وخت دی، که یې ورته رجوع وکړه، نو الله بښونکی او رحیم دی او که هغوی د طلاق هوډ کړی وي، نو ودې پوهیږي چې اللهﷻ هر څه اوري او په هر څه پوهیږي."

**په حنفي مذهب کې ایلا مکروه تحریمي ده؟**

د جاهلیت په زمانه کې به عربو د خپلو ښځو د ځوررولو لپاره د اکار کاوه چې تر یوه کاله یا له یوه کال څخه زیات هغه به خپلو ښځو ته نه ورنږدې کیدل، اسلامي شریعت ایلاء داسې قسم وګرځاوه چې په څلورو میاشتو کې باید پای ته ورسیږي، قسم کوونکی په دې کې مخیر دی چې قسم مات کړي او خپلې مېرمنې ته رجوع کوي او یا په قسم وفا

کوي او ښځه له ځان څخه بیلوي، نو که یې بېرته رجوع وکړه د قسم کفاره بـه ورکـوي او که نه نو مېرمن یې ورباندې د وخت په پوره کېدو سره په باین طلاق طلاقیږي.

**د ایلاء حکم**

که چیرې څلور میاشتې تېرې شي، نو مېرمنې یې په باین طلاق ورباندې طلاقیږي، که یـې خپلې مېرمنې ته رجوع وکړه اوقسم یې مات کړ، نو د قسم کفاره به ورکوي.

**۴- ظهار**

**د ظهار تعریف:** د خاوند لخوا د خپلې مېرمنې تشبیه کولو ته وایي، له داسې مېرمنـې سـره چې هغه په ده د ابد لپاره محرمه وي، لکه چې ورته ووایي ته په مـا لکـه زمـا مـور داسـې یې، یا ته په ما لکه زما د مور د شا په څېر یې.

**د ظهار حکم**

ظهار ناروا او حرام کار دی او ظهار کوونکی ورباندې گناهگاریږي، الله تعالیﷻ فرمایي: ﴿الَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنكُم مِّن نِّسَائِهِم مَّا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِي وَلَدْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُورًا وَإِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ﴾ [المجادلة: ۲] "له تاسې نه چې کوم کسان لـه خپلـو ښځونه ظهار کوي (مور ورته وایي)، د دوی مېرمنې د دوی میندې نه دي، د هغو میندې، خو همغه دي چې هغوی یې زیږولي دي. دوی یـوه ډیـره نـاوړه او دروغ خبـره کـوي او حقیقت دادی چې اللهﷻ ډېر معافي کوونکی او ښنونکی دی."

**د ظهار حکم**

د ظهار په ترسره کولو خاوند ته له ښځې سره جماع او یا د جماع مقدمات لکه مسه کـول ښکلول تر هغو حرامیږي، څو چې کفاره ورنکړي.

**د ظهار کفاره**

د کفارې په نیت د یوې رقبې (غلام) آزادول او که یې نه درلوده بیا، نو ددوو پرلـه پسـې میاشتو روژه نیول دي او که د روژو د نیولو قدرت نـه و، بیـا شـپیتو مـسکینانو تـه پـه مـړه

ګېډه خواړه ورکول، یا د خوړو قیمت ورکول دي چې سهار او بېګا ورباندې ځان موړ کړای شي. الله تعالی فرمایي:

﴿وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا ذَلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۞ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا فَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا ذَلِكَ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾

[المجادلة: ٢ – ٣]

"کوم کسان چې له خپلو مېرمنو نه ظهار وکړي بیا له خپلې هغې خبرې نه راواوړي چې کړې یې وه، نو مخکې له دې نه چې دواړه یوبل ته لاس ور وړي، یو غلام آزادول به وي، پدې (کفارې) سره تاسې ته نصیحت کېږي او تاسې چې څه کوئ الله ﷻ ترېنه ښه خبر دی او څوک چې غلام ونه مومي هغه دې دوه میاشتې پرله پسې روژه ونیسي. مخکې له دې نه چې دواړه یوبل ته لاس وروړي او څوک چې په دې هم قادرنه وي هغه دې شپیتو مسکینانوته خواړه ورکړي د (کفارې) دغه حکم د دې لپاره درکول کېږي چې تاسې پر الله ﷻ او د هغه پر پیغمبر ﷺ ایمان راوړئ. دا د الله ﷻ ټاکلي حدود دي او د کافرانو لپاره دردناکه سزا ده".




١. ایلاء لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.
٢. د ایلاء د مشروعیت دلیل څه دی؟
٣. د ایلاء حکم بیان کړئ.
٤. ظهار تعریف کړئ.
٥. د ظهار حکم له دلیل سره بیان کړئ.
٦. د ظهار کفاره څه ده؟ تفصیل ورکړئ.